


۱۳۸۶المریز

# دغریبک خزانه

لیکوال : نوراحمد قران مل

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ


- د کتاب نوم :: دغريبک خزانه
- مؤلف :: استادنوراحمد قران مل
- خپروندوی :: غريبک کتابتون(کندهار)
- چاپ چاري:: کندهار دپوهني مطبعه
- د تاليف کال :: ١٣٨٦ل.


noorahmad_kakar@yahoo.com:

## اهداء

داارواح او جسد سپیڅلي ښښتن فخر موجودات سرور کائنات ﷺ و روح ته .

در نښت ليکوال

## لړ لیک

## سریزه

ولـوي اللــه لــره دســتاینـي پــه ویلــو او دکائنــاتو



دســـردار فخرموجــودات جنـــاب حضـــرت محمـــد ﷺ و ارواح تـــر درود لیږلـــو وروســـته مـــي درنـــو دوستانو سلام او احترام ومنی !

ویـاړ لـرم چــي مـا نـا تـوان تـه زمـاالله بیـا ددي تـوان راکـړ چـي ددي ټـولګي پـه وړانـدي کولـو سـره خپـل هغـه حـق ادا کـړم کـوم چـي ددرنـو مخکنیـو اسلافو تـر ځنـګ یـې زمـا اولـس پـر مالري .

داکتـــاب چـــي دکنـــدهار دیـــوه پخـــواني دینـــي عـــالم ، پـــوه او دخـــداي ددوســـت ملـــا عبدالاحـــد اخنـــدزاده دکتـابتون پـه اړه ورانـدي کیـږي دهغـه ځـه ځخـه بحـث کـوي چـي تـر اوسـه مـوږ دمـر حـوم غریبـک دکتـابتون پـه اړه کـوم معلومات تر لاسه کړیدي !!

درســـانس ددورې را پـــدي خـــوا چـــي کـــومي کتابخـــاني موجـــودي وې ، هغـــه علمـــي زېرمـــي وې چـــي انســـانانو تـــر ډېـــره ګټـــه ور ځخـــه پورتـــه کولـــاي ســـواي ددغـــو کتابخـانو پـه لـړ کـي یـې ډېـر ځـه ځپـاره کـړي داسلامي نـړۍ دعباســـیانو پـــه دوره کـــي دکتابخـــانو دمـــوډرن اســـاس بنســـټ کښېښـــوول ســـو، نـــه یـــوازي دا چـــي پـــه عربـــي نـــړۍ کـــي دکتـــاب

# دغریبک خزانه

ساتني مینه له خلکو سره پیدا سوله ،،بلکي تر هغه وړاندي په جنوبي ارو پا فرانسه ، پخواني اندلس (اوسنۍ هسپانیه ) بیا وروسته داسیایي هیوادونه تر قلمروایران او نورو پوري را وغځېدله چي پدي اساس دانسانان دعلمي معلوماتو دزیاتولو لپاره ښه وکار پدېدي او دانسانانو تر منځ يې په علمي ساحه کي ډېر رقابتونه را منځته کړل ساینسي ، فلسفي معلومات يې پسي زیات کړل ورسره تر څنګ يې ددیني تر ویج په مل خلک له ډول ډول معلوماتو برخمن ،او دهغوي دذهني انکشاف او ورځني اکتشاف په را سپړلو کي يې ډېر نوښتونه را منځته کړل.

په وروستیو وختونو کي چي تر اسلامي نړۍ سر بېره چي پخپلو در بارونوکي اعزازونواخته سول په نوره نړۍ کي دکتابخانو تعدد مخ پر زیا تېدو سو چي دنولسمي پېړۍ په لړ کي ده فرانسې ملي کتابتون ، داتریش (استریا عمومي کتابخانه ،د هسپانیې ملي کتابتون ،د لندن بریټش کتابتون ، دپخواني شوروي اتحاد دلینن کتابتون ، دالمان عمومي کتابخانه دایتالیا دواتیکان کتابخانه ، او نور...... دبیلګي په توګه بللاي سو چي تر ډېره دنورو علومو او قیمتي او قدیمي اسنادو په درلودلو او دهغوي په را ټولو داسلامي ځلاندو دورو زر کلن تاریخي اثار يې نن دعوایدو او نمایش لپاره دلیدونکي پر مخ پرانیستي دي.

# دغریبک خزانه

ددې سر بېره دهیواد په سطحه کله چي په
افغانستان کي دهوتکي دروې په منځته را تګ سره دتیتو
پرکو قدیمي کتابونو درا غونډولوتر څنګ دوخت په در بار
کي دپوهو کسانو په ګمارنه او بیا په احمد شاهي دوره کي
دنوو نوښتونو را منځته کېدل ددې جوګه سول چي ددر بار
څخه دباندي هم علمي کسان پخپلو کورونو کي دکتاب
ساتني اساس کښېږي دي ددې سره سره چي کله په
افغانستان کي دبهرنيو یر غلګرو لخوا کوم لښکري هجوم
په وجود را غلي نه یوازي داچي زموږ پر خاوره یې دخپټې
اچولوي په موخه یرغل کړي ،ور سره تر څنګ دهغو په
وړاندي د مقاومت په لړ کي مو دنورو شتو تر څنګ فرهنګي
هر څه هم له بې سر نوشتۍ سره مخ سویدي خو په کورونو
کي که ځینو خلګو دخپلو پلرونو کتابونه او یا دهغوي نور
هنري څه په پاته سوو کي دعلمي معلوماتو ددرلودلو پر
اساس نه ،بلکي دهغوي دمیراثي درنښت پر بنسټ ساتلي
ډېر بیا داسي سوي چي وهغوي ته دارزښت نه ور کولو او په
هغوي دنه پوهېدلو پر اساس یې یا په هدیرو (حضیرو) کي
تر کوټنیو (قبرونو) لاندي کړي او یا یې هم په نه څه پر
قصابانو پلورلي او هغوي بیا خلګو ته غوښي پکښي ور کړي
دي

په کندهار کي ددغو ډول نایابو کتابخانو
څخه یوه هم دمر حوم غریبک کتابتون ؤ ددې کتابتون اثار

## دغریبک خزانه

چې ما قرآن مل پخپله لیدلي او یا مې دوخت له مشرانو معلو مات تر لاسه کې دلوړ درشل احمد شابابا ددورې سره یې هنریت سر خوري او په هغه دوره کې یې دلیکلو څرګندونه کېږي مرحوم غریبک اخوندزاده ته دغه کتابخانه داحمد شابابا دمعاصر سلیمان اخوندزاده څخه په میراث ورپاته وه چې مرحوم غریبک دخپل نیکه عبدالشکور اخونزاده او بیا دمرحوم اخونزاده صاحب دپلار عبدالخالق اخونزاده دډېرو زیارونو او هڅو په پایله کې دیوې مغتنمې زېرمې په پایله کې ورته محیا سول نورېې هم پسې وپالل دمرحوم غریبک په ژوندانه دسیمې دډېرو پوهانو دمرحوم علامه رشاد بابا ، مرحوم عبدالقدوس نجیب ، محمد رسول پښتون ، قاضي عبدالصمد علامه حبیبي ، او نورو ....هغه معلوماتونه تر لاسه کړل چې نومورې یې دخپل تجسس په لټه دعروج تر لوړو پوړونو پورې ورسول ،کله چې مرحوم غریبک په کومه شپه مړ کېدي نوددیارلسو ګونیو خطي او چاپي کتابونو تر څنګ چې دده دیوه شاګرد ملا احمد جان اخوند زاده لخوا پنجوایي ته دشپې لخوا وړل سویوه چې وروسته په سبا دیوه بل ګمنام کس لخوا له نومورې احمد جان اخوند زاده څخه دشپږو ګونیو خطي او چاپي کتابونو په منلو سره له پنجوایي راوړل سوي او بیرته دزړې جامع خلوت خانې ته چې دنومورې جامع په دننه کښې دمحراب تر څنګ قرار لري ترابیښودلو وروسته بیا دمرحوم غریبک کورني کتابتون ته

# دغریبک خزانه

بیر تــه نقــل ســویدي بیــا چــي کلــه دملــا ســعدالله نــومي کتــابفروش لخــوا دنومــوړي کتــابتون کتابونــه پېــرودل کېــدل دوخــت پنځــوس زره افغــانۍ یــې نقــداً زمــا مــورني نیکــه حــاجي عبدالواحــد تــه ور کــړي او پاتــه پنځــه ځلوېښــت زره یــې ددرو میاشــتو پــه قصــط (کښــت) ور کــړې •حــال دا چــي دنومــوړو نــادرو خطــي اثــارو ترڅنــګ پــه دې کتابخانــه کښــي یــوولس دانــې بریلــي الماس هــم دناپېژنــدل تیــا لــه درکــه ور ســره ورک ســول چــي دشــعیب اخونــد زاده څخــه پــدې کتــابتون کښــي پــه میراثــي توګــه پاتــه وه دنومــوړي دکتــابتون پــه اړه ددې پــه عــوض چــي خپلــه څــه ولــیکم لازمــه مــي وبللــه چــي دنومــوړي دکتــابتون او پــه هغــه کــي دنــادرو اثــارو پــه اړونــد دهیــواد او ســیمي ددرنــو پوهیــالیو مشــرانو مقــالې او لیکنــي دهغــې دنــدرت پــه اړنــد ســره را ټــول او دهغــه یادښــتونو ســره چــي زمــا ســره اوس دمرحــوم غریبــک کتــابتون لــه اثــارو څخــه پــه مکتــوبي میــراث پاتــه دي تاســو درنــو تــه وړانــدي کــړم نــور نــو کــه دکمپیــوتر پــه لیکنــه کښــي کومــه تېروتنــه مــوجــوده بخښــه بــه ســره کــوو او ورســره تــر څنګــه هغــه ځــوان یــاران کــه ددې جملــو

---

•ددې پنځه نوي زره افغانیو خبره ماته دملا سعدالله اخوندزاده وړور حیات الله اخوندزاده وکړله او راته ویې ویل زما په یاد دي چي موږ کله دا کتابونه را نیول نو یو پنجه جالۍ موټر موورته را ووست دهغه باډۍ دومره په بار سوله چي نور کتابونه په رسۍ نه پر تکیه کېدل بیا مو دا کتابونه ښکار پور بازار ته چیري چي زموږ دکان پکښې ؤ یووړل او هلته مو لیلام کړل .

# دغریبک خزانه

په مفهوم نه پوهېدل ښه استعداد او له حسده څخه پاک زړه ور ته غواړم

په مینه ادب او درنښت

نوراحمد ((قرآن مل))

دحاجي میرویس نیکه دعالي لیسې سر ښوونکۍ

کندهار غریبک کتابتون

ورځ ۱۳۸۵

## ايا غريبک پېژنې ؟

عبدالاحـد اخونـدزاده چــي پـه (غريبــک) ســره مشـــهور ؤ دکنـــدهار دزړي جـــامع خطيـــب او امـــام ؤ ، دخـــداي بخښـــلي عبـــدالخالق اخونـــد زاده زوي دمـــر حـــوم عبدالشـــکور اخونـــدزاده لمســـئ دشـــعيب اخونـــدزاده کړوســـئ• او ســـليمان کوسئ دئ

## تبر يې

دپښـــتنو دکاکړانولـــه تبـــره ښخـــه دســـران نيکـــه (ســـنځر نيکه ) دزوي ((حمـــزه ))لـــه اولـــادې ښخـــه دي پـــه ژونـــدوني يـــې يـــوورور دعبدالواســـع اخونـــد زاده پـــه نـــوم در لـــود چـــي ددې ورور پـــه مـــل يـــې دوې مېرمنـــي دده پـــه ژونـــد کـــي وفـــات ســـويدي او يـــوه يـــې دده تـــر مړنـــي وروســـته مـــړه ســـوېده پـــه پنځلســـــو تنـــــو اولـــــادونو کـــــي يـــــې دحـــــاجي عبدالحميـــــد ((غمجمن )) په نوم يو زوي او يوهلور پاته سوېده .

• شعيب اخوندزاده يو بل ورور هم دملانعمان اخندزاده په نوم در لود چي همدغه زړې جامع ته څېرمه په کور کي ور سره او سېدی قبريې او س دکندهار ښار په شمال طرف کي دعبدالشکور اخونزاده دقبر دپښو خواته پروت دي

# دغریبک خزانه

## استوګنه يې

نيکونـو يـې دحـاجي ميـر ويـس نيکـه دپـاڅون
څخـه څـو کالـه مخکـې د ميختـره [1] وه کنـدهار تـه دکور نيـو
ترپګنيـو پـر اسـاس کـوچ را کړيـدي پـر هغـه ځـاي چـې دوي
اسـتوګن سـويدي دلتـه يـې يـو کلـي او يـو مسـجد جـوړ کـړي چـې
وروسـته دلـوړ درشـل احمـد شـا بابـا پـه دوره کـې پـر دې سـيمه
بانـدي دکنـدهار داحمـد شـاهي (اشـرف البلـاد) • ښـار څلورمـه
ناحيـه واقـع سـوېده دځلرمـي نـاحيې دباميزو پـه لمـړی کوڅـه
کـې پخپـل پلـارني ټاټوبي کـې چـې دزړې جـامع شـمال ختـيځ
اړخ تـه موقعيـت لـري پـه (١٢٧۴) لمريـز کـال کښـې زوکـړې
دي او پـه (١٣٢٩) لمريـز کـال کښـې لـه فـاني څخـه سـترګې
پټـې کړيـدي او پخپلـه پلـارنۍ هـديره کـې چـې دکنـدهار ښـار
شـمال پلـو دکـوټ بابـا دکـوځې هـا خواتـه پرتـه ده او زوړ منـار •
پداسـې حـال کـې ورتـه ولـاړ چـې اوس دچپـه کېـدو پـر مهـال او

---

[1] په چاپ کي داځای تیروتنه لري دلته اصلاح سوه

• دپوهاند رشاد سره زما قران مل ژوندی مرکه ثبت غريبک ارشيف
ددې ښار څخه مخکې ددې کلي ثبوت بل ثبوت وګوری دکندهار مجله ١٣٨۵
لمريز کال د( ) مياشتي د(غرېبک خزانه ) دښاغلي محمد معصوم (هوتک )
ليکنه

• ددې منار تاريخي قدامت د تېمور شا دراني په دوره پوري اړه لري دهمدې
منار لوېديځ خواته په دريمه کوټنۍ (قبر ) کي مر حوم غريبک ښخ دي روح دي
يې ښاد وي ددې منار تصوير دزروړانګي مجلې دلمړي کال دشپږمي ګڼې پر
څلرم مخ ليدلاي سي !!

# دغريبک خزانه

ددولتـي چـارواکو او خـارجي اينجـو کـانو ور تـه پـام نـدي کـوم چـي دافغانسـتان پـه نامـه هـر څـه شـتنمۍ داعمـار مجـد د پـه نـوم پـه چار ښاخو بادوي

## زده کړي يې

دا چـي ددې کـورنۍ پلرونـه سلسـله پـر سلسـله دينـي عالمـان تېـر سـويدي نـو ددې کـورنۍ دنـورو غـړو غونـدي مـر حـوم (غريبـک) هـم لـه خپـل پلـار عبـدالخالق اخونـدزاده څخـه پـه فقـه، صـرف، نحـوه، حـديث، عقايـد، منطـق، او رياضـي کـي زده کـړي کـړيدي، تـر دې سـر بېـره يـې دکتـابتون لـه اثـارو څخـه څـر ګنـد يږي چـي نومـوړي ده سـتورو پېژندنـه (علـم النجـوم) او تصـوفو سـره هـم علاقـه درلـودل او پـه تصـوفو کـي ديـوه خليفـه غونـدي يـې دنـده پـر غـاړه درلـوده چـي پدغـه اړخ کـي يـې ځينـي موريـدان پـه کمـال رسـولي دي، پـه طريقـو کښـي يـې دعـالي نقشـبنديې شـريفي طريقـې دخپلـو کـورنۍ دروحانيونو پليوني (پيروي) کړېده.

## تدريس (ښوونيز کارونه) يې

پـه ټـوليز ډول يـې طالـب علمـان درلـودل• چـي پـه اړه يـې دکنـدهار دحـاجي ميـرويس نيکـه دلېسـې او سـنې مدير اسدالله (همپا) داسي ليکي:

---

• حاجي محمد نبي

# دغریبک خزانه

((زمـوږ کـور پـه څلرمـه ناحيـه دبـاميزو پـه کوڅـه کـي دئ زمـوږ لـه مشـرانو سـره ((غريبـک)) پـوره پېژنـدل ديـوې کـوڅې وه دهغـوي د جملـې څخـه حـاجي عبـدالقيوم خـان چـي ډېـر مشـهور ښـکاري ؤاو دده دشـاګردانو لـه جملـې څخه ؤ))

## کتابتون يې

دمـر حـوم غريبـک دکتـابتون پـه اړونـد درنـو ليکوالـو اروابښـاد پوهانـد عبدالشـکور رشـاد ، اروابښـا د اسـتاد عبدالقـدوس نجيـب ، سـړبن ، زلمـي هيـواد مـل ، اسـدالله خـان (همپا ) محمـد معصـوم هـو تـک ، حبيـب الله رفيـع ، حيـات الله رفيقـي حـاجي احمـد صـميم او نـورو خپـل نظرونـه او يادښـتونه

---

دحاجي غلام نبي زوي په نستعليق او نسخ ليک کي يې دمختليفو استادانو شاګردي کړېده او ديوه متوسط ليک څښتن دي عمومي عمر يې تقريباً څلوېښو کالو ته رسېږي له ملا عبدالاحد اخندزاده څخه يې هم دليک استفاده کړېده دليک نمونه يې داده دروړاندي سوه کندهار مجله ۱ــ۲ ستونونه ۵ مخ
حاجي ګل محمد
دحاجي غلام رسول زوي په نسخ او نستعليق کي ميانه خط لري عمر يې تقريبا (۳۸) کالو ته رسېږي دئ وايي ما دخط ډېره استفاده دملا عبدالاحد اخوندزاده څخه کړېده او دهغه دليکني سبک مي غوره کړي دي دليک نمونه يې دادي تاسو ته وړاندي سوه
کندهار مجله ۱ــ۲ ستونونه ۵ مخ دمحمد داؤد خان دجمهوريت دوره داستاد عبدالقدوس نجيب ليکنه،دملي سودا ګر حاجي ظاهر جان له کتابتون څخه

# دغریبک خزانه

وړانـدي کـړي چـي تاسـو يـې ددې ټـولګي پـه لـړ کښـي وينـئ زه قـرآن مـل ددې ليکنـي پـه لـړ کښـي صـرف دهغـو قلمـي کتـابونو جـدول در تـه وړانـدي کـول غـواړم چـي ماتـه دنومـوړي لـه علمـي زېرمتون له پاته سوو په لاس را غلئ دي

.......بيضاوي الاوراق قلمي

۰. ابراهيم شاهي من الجلد الي جلد الثالث
۱. ابوالمنتهي الحواشي قلمي
۲. اتقاس ذكيه شرح حكيم عطافيه قلمي
۳. احمد جامي رنده فيلي قلمي
۴. اخيار الاخبار و عمر قلمي غلام جان
۵. اخترک قلمي
٦. اخيا رالاخباردرتصوف قلمي وقايه

بيـا محتـرم غريبـک تـر اوومـي شـمېرې وروسـته لانـدي ليكنـه لـري تـردې ليکني وروسته بيا نومړي لست پيل کېږي

سياهه كتاب هاي سيا خورد

۷. اربعين قلمي
۸. اربعين معري قلمي
۹. اسرار العباد
۱۰. اسرار الكفات قلمي
۱۱. اصغر نصـــاب الصـــبيان نـــاپوره دررســـاله حكمـــت رياضـــي و ديگران قلمي
۱۲. اقول بخط خوب قلمي
۱۳. الجزالاول متن مير شرح از مير شريف علامه قلمي
۱۴. القول السديد .
۱۵. المجلد السادس من مكتوبات امام رباني محب شاني
۱٦. اوراق خوشخط فارسي و كتاب غزل قلمي

۱۷. اوراق دروقایه نابکار
۱۸. اوراق شرح کنز قلمي
۱۹. اوراق قلمي کاغذ سفید تواریخ میباشد

بیا وروسته اخندزاده صاحب په لاندي جمله کي لیکي ((سیاهه کتابهاي بکس سبز اخضر رنگ در درونش زنجیر خورد میباشد))

۲۰. اوراق مطول محشي قلمي
۲۱. اوراقي کیمیا و تعویذات مخلوط قلمي
۲۲. ایساغوجي خط خراب و قایه کهنه قلمي
۲۳. ایضاح شریح المراح قلمي
۲۴. باطل نامه و غیر ذالک و تعویذات
۲۵. بحرالرایق قلمي محمدعسي .
۲۶. بدیع المیزان بسیار محشي کاغذ آبي قلمي
۲۷. بدیع المیزان قلمي
۲۸. بدیع المیزان کاغذ آبي قلمي خط بیکاره
۲۹. بدیع المیزان کاغذ نیلي محشي قلمي
۳۰. بدیع المیزان محشي قلمي
۳۱. بدیع المیزان محشي قلمي
۳۲. بیاض قاضي عمر در فقه شریف قلمي
۳۳. بیاض در فقه
۳۴. بیاض دیرینه نظم ها
۳۵. بیاض قاري عمر قلمي
۳۶. بیاض محمدهاشم کلان قلمي
۳۷. تاتارخانی دعوي قلمي
۳۸. تاج العابدین قلمي
۳۹. تجز سعادت فارسي
۴۰. تجوید القران قلمي

۴۱. تحفة الاختيار ورسائل قلمي
۴۲. تحفة السعادت قلمي
۴۳. تحفة الصلاة از قلمي ما
۴۴. تحفة المحر وقايه كلان قلمي
۴۵. تحفة المومنين قلمي بخود
۴٦. تذكرة الاوليا صوفي قلمي
۴۷. ترتيب الصلوة مع مولود نامه و تعويزات قلمي
۴۸. تعته اخن يوسف خطي اعلي قديمه قلمي
۴۹. تعويذات ملانظر قلمي
۵۰. تفسير بيضاوي كامل قلمي
۵۱. تفسير البيضاوي ۲جلد قلمي
۵۲. تكمله و عقوري بر شرح قلمي
۵۳. تلويح للابرار و يز الساعۀ
۵۴. تنوير في اسقاط التهير تصوف قلمي
۵۵. تنوير قلمي تصوف جاجا
۵٦. توضيح التلويح در علم اصول شريعة الغرا
۵۷. جداول زيح ملاموسي قلميي
۵۸. جرز ثمين برحصن حصين قلمي
۵۹. جز و تجاري وقايه قلمي
٦۰. جفر جامع مفتا الاستخراج و غيره قلمي
٦۱. جواد خلاصة الحساب قلمي
٦۲. جوامع الكلم قلمي
٦۳. جونگ قلمي
٦۴. حاشيه شرح موافق بخط اعلي قلمي
٦۵. حاشيه اخر نا معلوم قلمي در منطق جلد .
٦٦. حاشيه است و يا كتاب كاغذ دورنگ بي سروپا مجهول الاسم قلمي

٦٧. حاشیه بخط متقدمین قلمي
٦٨. حاشیه جمالي بیضاوي قلمي
٦٩. حاشیه در منطق مجهول الاسم قلمي
٧٠. حاشیه شرح حکمت ناپوره قلمي کاکاجان و حواشي سلم
٧١. حاشیه شرح مطالع میرزاجان جلد قلمي
٧٢. حاشیه صبور بر شمه قلمي
٧٣. حاشیه عبدالحکیم بر مقدمات تلویح اربعه قلمي
٧۴. حاشیه عبدالحکیم علي القطبي دیرینه قلمي
٧۵. حاشیه عبدالمحکیم علي القطبي دیرینه قلمي
٧٦. حاشیه عماد بر شرح تسمه بخط قدیم
٧٧. حاشیه قطبي بر تصدیقات قلمي بیکاره قدیم
٧٨. حاشیه محمد هاشم برشرح حکمت قلمي جلد
٧٩. حاشیه مسح مواقف ملامسعود قلمي
٨٠. حاشیه ملامسعود بر شرح حکمت قلمي
٨١. حاشیه میرزا جان شرح الحکمت العین کرم خورده خط قلمي
٨٢. حاشیه میرزا شرح تهذیب قلمي
٨٣. حاشیه میزا جان بر تصورات شرح مطالع قدیم قلمي
٨۴. حاشیه نامعلوم قلمي
٨۵. حاشیه هاشم سر شرح حکمت قلمي
٨٦. حب یوسفي قلمي
٨٧. حکایات صحابه بې سرپا خوشخط قلمي جلد
٨٨. حواشي میرزا شرح شهرت قلمي
٨٩. خاتملاو عنایت میر ایساغوجي قلمي
٩٠. خان علوم بر مرا سلات کلان قلمي
٩١. خان علوم بر میرزا شرح موقف بخط اعلي از وخت احمد شاهي غازي

۹۲. خرانة العلماء اول قلمي
۹۳. خزاینة العلماء کرام قلمي
۹۴. خط کهنه جواهر الاسرار قلمي
۹۵. خلافیات شرح منظوم قلمي
۹٦. خلخالي قلمي
۹۷. خلوتیه بر شرح الحکمت در تصنیف قراباغي قلمي
۹۸. دافع الملحدین بي وقایه قلمي
۹۹. در المجانس قلمي
۱۰۰. در المجانس و حکایات الصالحین قلمي
۱۰۱. در مختار قلمي
۱۰۲. دستور العلاج قلمي خوشخط
۱۰۳. دستور العلاج ناقص مع شرح الاوراق
۱۰۴. دستور لغته قلمي
۱۰۵. دعا رساله صلوة مصري نفخ الفصوص
۱۰٦. دقایق .......... قلمي
۱۰۷. دو کتاب در وقایه هر دو قلمي یک در تصوف و دیگر در فقه فارسي .
۱۰۸. دیوان علي ناقص قلمي
۱۰۹. ذخیره الملوک قلمي
۱۱۰. ذخیره برهانیه وقف قلمي
۱۱۱. راحت القلوب
۱۱۲. ربع الاخره مدارک قلمي
۱۱۳. رسائل خواب و تعویذات و حکایات کاغذ سبز
۱۱۴. رسائلي در تصوف
۱۱۵. رساله القس اللقان ایراني قلمي
۱۱٦. رساله برهان في علامات مهدي اخرالزمان مع الکشف الرذال قلمي

۱۱۷. رساله بقروطباخي قلمي
۱۱۸. رساله حسنات العارفين قلمي نقد خورد
۱۱۹. رساله خورد تصوف خوشخط کرم خورد
۱۲۰. رساله دقيقه في الادويه القلبيه قلمي مع مفردات طب قلمي
۱۲۱. رساله صميات قلمي بې سرو پا
۱۲۲. رساله عشقيه
۱۲۳. رساله فتح الباب في المعرفة الرب ارباب قلمي
۱۲۴. رساله لامعه در تصوف قلمي
۱۲۵. رساله لغت داد رار قلمي
۱۲۶. رساله مرات مسعودي
۱۲۷. رساله مستعاث
۱۲۸. رسالهاي منطق قديمه بخط ديرينه
۱۲۹. رسالهٔ علم سينه قلمي
۱۳۰. رسالهٔ قرائت و ميراث و حساب و صرف مير قلمي
۱۳۱. رسالهٔ نقشبنديه و خزينه بر اعداد در علم حساب قلمي
۱۳۲. رشحات حسين کامل قلمي
۱۳۳. روضة الاحباب قلمي
۱۳۴. رياض الصالحين قلمي
۱۳۵. زبدة الفرايض فارسي قلمي
۱۳۶. زيح الغ بيگي قلمي
۱۳۷. سرملامين
۱۳۸. سعديه برسمه و جلسه ديگر قلمي از ما
۱۳۹. سعديه شرح سمتيه قلمي
۱۴۰. سعديه ورساله حاشيه ديگر در منطق قلمي
۱۴۱. سير في الکلام زاهد بر امور عامه قلمي
۱۴۲. شرح نخبه قلمي

۱۴۳. شرح بهه ازما قلمي
۱۴۴. شرح الامالي قلمي
۱۴۵. شرح الايضاح في المعاني قلمي
۱۴٦. شرح الميزان در منطق قلمي
۱۴۷. شرح ايساغوجي يعني شيخ و مير ايساغوجي و ديگر در زير حاشيه و ديگر
۱۴۸. شرح بوستان
۱۴۹. شرح تجريد دواني ناقص قلمي
۱۵۰. شرح تجريد قلمي بخط بيكاره
۱۵۱. شرح تهذيب قلمي ازما
۱۵۲. شرح چغميني قلمي خورد قد .
۱۵۳. شرح حض و ثلاثيات قلمي
۱۵۴. شرح خلاصة الحساب قلمي ديرينه
۱۵۵. شرح عين العلم فارسي قلمي
۱۵٦. شرح فضل الله تبريزي برموجد قلمي
۱۵۷. شرح لباب الاعراب قلمي
۱۵۸. شرح مسلم قلمي دراز قد
۱۵۹. شرح مسلم نامعلوم قلمي
۱٦۰. شرح معات شخ العرقي اثر جامي
۱٦۱. شرح مقاصد كرم خورده در علم كلام قلمي جلد كلان پوش شده
۱٦۲. شرح ملا از طرف مبني قلمي
۱٦۳. شرح ملا قلمي غلام جان
۱٦۴. شرح مواقف نصف الاول جلد جاجا حاشيه دار ب قلمي متقدمين
۱٦۵. شرح وقايه قلمي اول
۱٦٦. شرح گلستان قلمي

١٦٧. شريح القصيده لقاني قلمي
١٦٨. شريفيه قلمي معراء
١٦٩. شفا در منطق قلمي
١٧٠. شفافي حقوق مصطفي قلمي
١٧١. شمائل حصن حصين ازما قلمي
١٧٢. شمائل قلمي
١٧٣. شمس الافاق ملاموسي قلمي
١٧٤. شـمس المعـارف الكبـري بعبـي قـانون چـي مـع الرسـاله مولـود النجوم قلمي
١٧٥. شمس المعارف ضغرا قلمي ملاموسي
١٧٦. شمس مرمر قلمي
١٧٧. شيخ عبدالحق احالي بر مشكوة قلمي
١٧٨. صدرا خوشخط قلمي
١٧٩. صدراء كامل قلمي
١٨٠. صدري قديمه خط متوسطه
١٨١. صراح الغته قلمي
١٨٢. صرف مير از ما قلمي
١٨٣. صرف مير قديم از كتابخانه خود
١٨٤. صواعق عرقه حسيني قلمي
١٨٥. صيد نامه قلمي
١٨٦. ضوء المعاني بر امالي قلمي
١٨٧. طب اكبر قلمي
١٨٨. طب اين ذكر منصوري
١٨٩. طب يوسفي
١٩٠. طرح كنداني و منيه و نورالايضاح قلمي
١٩١. طوالع الانوار جلد اصغر قلمي
١٩٢. طوالع لانوار قلمي

۱۹۳. عبدالحکیم بر قطبي قلمي کاغذ کوکاني
۱۹۴. عرفي خودي قلمي
۱۹۵. عضیدي در علم اصول قلمي
۱۹٦. عمادالاسلام فارسي قلمي
۱۹۷. عنایت القاضي بر بیضاوي قلمي
۱۹۸. عنایة بیع قلمي
۱۹۹. عین العلم خط قلمي ملا عبدالله
۲۰۰. عین العلم فارسي خط معري قلمي
۲۰۱. عین العلم محي الدین قلمي
۲۰۲. غلام یحي الي قلمي
۲۰۳. فتوح العقایب مؤلف فتح محمد
۲۰۴. فرایض الاسلام عربي قلمي
۲۰۵. فربین نامه قلمي
۲۰٦. فرض الخمس فتح الباري قلمي
۲۰۷. فضول عماري في التناقض الدعون قلمي
۲۰۸. فیروز شرح مسلم قلمي دراز قد
۲۰۹. قاضي سلم با رسالۀ دیګر قلمي
۲۱۰. قانون آملي بر قانون جلد اول علمي قلمیي
۲۱۱. قانونچه قلمي محشي
۲۱۲. قرار باین قاري قلمي
۲۱۳. قرالعیون
۲۱۴. قراهدین شفائي قلمي
۲۱۵. قصیده تنسراني
۲۱٦. قطلاني بر شفاف قلمي
۲۱۷. قواعدالقران قلمي غلان جان
۲۱۸. قواعد تسع الامام رازي و اوراق تجرید
۲۱۹. کاغذ عجیب بې سروپا مجهول الاسم در علم منطق

۲۲۰. کتاب االمجهول لاسم سر در حکمت قلمي
۲۲۱. کتاب احیاء العلوم قلمي خوشخط
۲۲۲. کتاب البرکات في افضل السعي و الحرکت در طب قلمي
۲۲۳. کتاب السلوک پي پا کاغذ سبز
۲۲۴. کتاب المرصاد العباد خوشخط قلمي
۲۲۵. کتاب ایراني نامعلوم خوشخط
۲۲۶. کتاب بخط قدیم محشي قلمي در علم منطق مجهول الاسم
۲۲۷. کتاب تصوف بخط عربي زبانش فارسي قلمي
۲۲۸. کتاب تصوف قلمي
۲۲۹. کتاب در علم اصول فقه حاشیه
۲۳۰. کتاب در عملي سلوک قلمي وقایه شرح
۲۳۱. کتاب در منطق خورد نوشته قلمي
۲۳۲. کتاب دوایح تصوف ۲ جلد خوشخط قلمي
۲۳۳. کتاب رابع في الحیات و جراحات قلمي
۲۳۴. کتاب رشحات وقایه منقش چرخي قلمي
۲۳۵. کتاب زبته الفرایض . قلمي
۲۳۶. کتاب سبع الجواهر من تصنیف ملا میا فقیرالله صاحب ودرج کرده درین کتاب دوایر و تصوف و طلسم و سبعة الکواکب و سیاحت في الافلاک و اذکار و ادوار قلمي
۲۳۷. کتاب شرح عقاید جلالي قلمي بیکاره
۲۳۸. کتاب طب قلمي عربي
۲۳۹. کتاب طب نظام الدین قلمي خوشخط
۲۴۰. کتاب طیب القلوب
۲۴۱. کتاب قلمي بزبان افغاني از تصوف و قایه
۲۴۲. کتاب قلمي در فقه کهنه مهوالامم
۲۴۳. کتاب قلمي درطب به تقریر عربي نامش معلوم نیست .

۲۴۴. کتاب کچکول تصوف قلمي
۲۴۵. کتاب معماي منظوم قلمي
۲۴۶. کتاب نامعلوم در اصول ازاخوند صاحب مزرع قلمي
۲۴۷. کتاب نسب نامه ترکي قلمي خضرات
۲۴۸. کتاب و رسائل متنوعه قلمي نابکار
۲۴۹. کنز مع معرا قلمي
۲۵۰. کنزالدقایق محشي قلمي
۲۵۱. کیمیا سعادت قلمي
۲۵۲. لصدرالدین قونوي
۲۵۳. لطایف بر وقایه قلمي
۲۵۴. لمعات الاسرار کمترک قلمي
۲۵۵. لوائح مع الشمایل و اسناد یاسین قلمي ملا غلام
۲۵۶. لوایح در تصنیف و رساله سوره
۲۵۷. مبسوط شفعه قلمي
۲۵۸. مثل شرح تجرید قلمي
۲۵۹. مجموع الشمائل بنویه و مفتاح الفلاح و دیګر اوراق
۲۶۰. مجموع الفواید قلمي ملاغلام
۲۶۱. مجموع النهایه مجموعه قلمي
۲۶۲. مجموعه اوراد و اذکار و خواص قلمي ملانظر
۲۶۳. مجموعه بي سروپا مجهول الاسم وقایه نازک نيپ قلمي
۲۶۴. مجموعه تحفة الاخیار واسماء بدر
۲۶۵. مجموعه دوا قلمي
۲۶۶. مجموعۀ بخارائي قلمي رسائل منطق
۲۶۷. مجموعۀ فقه میر نوي ارزکان قلمي
۲۶۸. محشي جاجا قطبي وقایه چرمي قلمي مع شرح دیباچه
۲۶۹. مخ الفصول قلمي
۲۷۰. مختصرالمعاني ناقص قلمي

٢٧١. مختصر قلمي محشي
٢٧٢. مخرحاشيه ميبذي قلمي
٢٧٣. مراح قلمي ازما
٢٧٤. مرزا جلال و ابوالفتح قلمي
٢٧٥. مرصاد العباد قلمي
٢٧٦. مرعات سرشرح حكمت العين قلمي
٢٧٧. مسلم الثبوت خطي
٢٧٨. مشكوة بيع قلمي
٢٧٩. مطالب المومنين فقه قلمي
٢٨٠. مطول قلمي
٢٨١. معارفات رباني قلمي
٢٨٢. مفتاح الصلواة قلمي
٢٨٣. مفتاح قلمي ازما
٢٨٤. مفتح در رسم الخط قلمي
٢٨٥. مفرح القلوب فارسي قلمي
٢٨٦. مفرح الهم شريح قصيده برده
٢٨٧. مقامات وارثي و تحفه نصايح قلمي
٢٨٨. مقدمه غزنوي قلمي
٢٨٩. مكتوبات مجدد الف ثاني خوشخط قلم
٢٩٠. مكملة الايمان اوراق خورد قلمي
٢٩١. ملاجلال برحاشيه.. قال
٢٩٢. ملتقي الابحر قلمي
٢٩٣. مليح الصبيان قلمي
٢٩٤. مناسک حج حاجي سرافراز خان قلمي
٢٩٥. منطق الابحر قلمي
٢٩٦. منطق الطير قلمي
٢٩٧. منظوم در طب قلمي

۲۹۸. موافق ثلثه
۲۹۹. مواقف ثلثه جاجا حاشیه قلمي بخط قدیم
۳۰۰. موجز از قاضي اکرم کرم خورده
۳۰۱. موجز سدیدي قلمي
۳۰۲. موجز محشي قلمي
۳۰۳. مولوي عبدالحکیم و بیضاوي قلمي
۳۰۴. میر ایساغوجي بسیار محشي قلمي
۳۰۵. میر ایساغوجي مستعمل کهنه دراز قد قلمي
۳۰۶. میر شرح مطالع قلمي خراب و مستعمل شده
۳۰۷. میر قطبي خوشخط قلمي
۳۰۸. میر قطبي خوشخط قلمي خورد
۳۰۹. میر قطبي سرش کرم خورده قلمي بیکاره
۳۱۰. میر قطبي محشي قلمي
۳۱۱. میر مطول قلمي
۳۱۲. میر مطول قلمي اخر ندارد
۳۱۳. میر مطول قلمي خزینة العدن قلمي
۳۱۴. میرزاي بخط قدیمه محشي خورد قلمي
۳۱۵. میرشرح مطالع قلمي قدیم
۳۱۶. نسخه فتح الباب قلمي
۳۱۷. نقایس لانفاس قلمي
۳۱۸. هدایت النحوه قلمي ازما
۳۱۹. هدایت النحوه قلمي
۳۲۰. هزار مسائل پښتو قلمي
۳۲۱. و غیره رسایل همگي
۳۲۲. وصول عمادي در جزوکالت قلمي
۳۲۳. وقایق الاخبار قلمي کاغذ زرد
۳۲۴. وقایه شریح شواهد نبوت

۳۲۵. وقایهٔ شرح دراز
۳۲۶. یس در شریح شمائل قلمي
۳۲۷. یکروزي و هیر هردو قلمي
۳۲۸. گلستان خوشخط قلمي

# دغریبک کندهاري کتابخانه او دواصل روښاني ددیوان منتخبات

*لیکوال اروانباد پوهاند عبدالشکور ((رشاد)*



کندهار دښار دبامیزو
په کوڅه یولوي مسجدجامع سته
چي ((دزړي جامع)) په نوم مشهور
دي او ویل کېږي چي پر دغه ځای
ودان ؤ .ددغي جامع مسجد دامامت
چاري دڅو پېړیو را هسي دیوي
کاکړي کورنۍ په لاس کي دي ، چي
دغه کورنۍ په کندهار کي دزړي جامع داخندزاده ګانو په نوم شهرت لري . ددغي کورنۍ یو متاخر سړئ عبدالاحد اخندزاده نومېده چي له خپل نامه سره به یې ((غریبک)) هم لیکه او دکندهار له ښو خطاطانو څخه ؤ غریبک پخپل کور کي یوه داسي مغتنمه کتابخانه درلوده چي دخپل کم او کیف په لحاظ یې په درست کندهار کیساریځ لرؤ . ده ته دکتابو درا ټولولو هڅه له خپل پلار ملاعبدالخالق اخندزاده څخه پاته وه او د((غریبک)کتابخاني ددغي کورنۍ دڅو پېړیو علمي او ادبي ذوق نمایندګي یې کوله په (۱۳۲۹) ش کال ((غریبک))مړ سو او دده مغتنمه کتابخانه بې سر پرسته پاته سوه ، د((۱۳۳۶ کال دحمل په میاشت کي دغه کتابخانه خرڅه سوه او دفیض لمنه یې تر ملکو ملکو پوري

اوړده سوه ، په دغه فیض کي یې ما هم څه برخه ودرلوده او څو قلمي کتابونه په خورا کښته بیه لاس ته ځیني را غلل یو له هغو کتابونو څخه دملا اختر کندهاري بیاض ؤ ، چي په را نیولې بیه ((فقط لس افغانۍ ))مي پښتو ټولني ته ور کړ .دملا اختر کندهار په بیاض کي دواصل روښاني یوه قصیده او پنځلس (۱۵) غزلي هم خوندي دي . چي دادي اوس دپښتو ټولني په زیار دیوې رسالې په بڼهٔ پښتني




جامعې ته وړاندي کېږي او دپښتو ادب مینان دواصل روښاني په لوړ ادبي مقام خبروي . دواصل روښاني ددیوان په دغو منتخباتو کي د(ت) درديف درې غزلي ، د(ل) درديف یوه د(ن) درديف دوې د(و) درديف یوه غزله سته پاته (۹) غزلي او یوه قصیده یې د(ي) درديف دي دملا اختر کندهاري له بیاضه څخه ما څلور غزلي په ۱۳۴۰ ش کال دیوو لسم او دوولسم ټولګیو په پښتو قرآتونو کي را واخیستلې او دلمړیپلا لپاره مي دواصل روښاني داشعارو نموني افغاني ټولني ته وړاندي کړې •

---

•دیوولسم ټولګۍ په پښتو قرآت کي د (( خود پرست ))او (( حقیقي واصل )) تر عنوان لاندي ددوهم چاپ ۱۰۴ـ۱۴۴ مخونه وګورئ ددولسم ټولګۍ په پښتو

## دمیر محسن دمزاراتور ساله

لیکوال : سر محقق زلمئ ((هیواد مل ))

دمیـــر محســـن دمزاراتویـــوه رســـاله دمـــر حـــوم غریبـک• پـه ښـکلي خـط دپښـتو ټـولني پـه کتابخانـه کـي سـته ، ددغـــي رســـالې اوږده دوویشـــت پـــه شـــپاړس کـــي ده ،او دپـــاڼو شـمېر يـې نهـه ويشـت دي ،او پـه هـر مـخ کـي معمولـاً شـل بيتـه کښـل سـوي ،اود بيتونـو شـمېر يـې تـر يـو زرو سـل بيتـو پـوري رسيږي .

مخکـــي تـــر دې چـــي درســـالې هراړخيـــزه پېژندنـه وکښـل سـي ، لازمـه بريښـي چـي دمیرمحسـن پېژندنـه هـم څـه ناڅـه وسـي ، کـه څـه هـم دمیـر محسـن پېژندنـه پوهانـد عبدالشـکور رشـاد پـه پښـتانه شـعرا دوهـم جلـد کـي مفصلـه کښـلې ده•خـو دلتـه بـه يـې دده دخـولې او پښـتانه شـعرا لـه مخې په لنډه توګه وليکو :

میـــــر محســـــن دعبـــــدالرحيم زوي ، دعبدالحميـد لمســئ ،او دسـيدابـدال کړوسـئ دي دخپـل ورنيکه په باب وايي :

زمـــوږ جـــد چـــي
ســـــــيد ابـــــــدال ؤ

---

قرآت کي ((دبې عمله شېخ !))او دشريعت رسی ))تر عنوان لاندي ، ۸۵ ـــ۱۱۱مخونه وګورئ .

•کندهار مجله دسردار محمد داؤد خان دجمهوريت

چــــي ابـــدال بــدر کمــــال ؤ
دخپــــل عصــر شــيخ صـــنعان ؤ
هـــم وکيـــل دخپـــل زمـــان ؤ

دميــر محســن نيکـه پـه پښـين کـي او سـېده ، او دده دخپلـي وينـا لـه مخـي دلـوي احمـد شـابا يـوولس سـوه يـو شـپېته نـه تـر يـوولس سـوه شـپږاتيـا ه ق پـه زمانـه کښـي دوزيـر شـاولي خـان پـه وسـيله کنـدهار تـه را وسـتل سـو ي دي پـدې باب يې ويلي دي :

بيـــا وزيــــر ډېـــره زاري کــــړه
نـــور عـــالم يـــې رويبــــاري کـــړه
چــــي اي پېــــره زه غلــــام يــــم
جرعـــه نـــوش ددې اعلـــام يـــم
لکــــن دا مـــــي افتخــــــار دي
پــــر پادشــــا مـــي ډېــر وقـــار دي
پــــه تعجيـــل را ځــــه زمــــا پيــــره
چــــي پادشــــا نســــي دلګيــــره
نــــو ســــيد ابـــدال روان •شــــه
پـــه فـــراق دخپـــل خپلـــوان شـــه
احمـــد شــــاه پـــه ده شـــادان شـــه
پـــه جلـــوو کـــي يـــې روان شـــه

ميــر محســن پــدې رســاله کــي دخپــل نيکه عبدالحميد دمړيني نېټه داسي ښودلې ده :

•شه ((سو))

زر دوه ســــــــوه هجــــــــرت ؤ
دوه څلو ښــــــت پــــر زیـــــادت ؤ
پــــه جــوار کــــي درحمـــان شـــه
دجنـــــت پــــر لــــور روان شـــه

دعبدالحمیـد څلـور زامـن ؤ ، چـي دمیـر محسـن پلار يې دريم زوي دي پدې باب يې ويلي دي .

جانشــین یــې رحــیم جــان ؤ
چـــي مقبـــول دهـــر انســـان ؤ
دریـــم زوي یـــې رحـــیم خـــان ؤ
ډک دعلـــــم و دعرفــــــان ؤ
مــــــدرس دشـــــــریعت ؤ
مهمــــــــد دطریقـــــــت ؤ
هســـــي رنګــــه مســـتقیم ؤ
ډېــــر قـــایم پــــر دیـــن قـــویم ؤ
پــــه عرفـــان کــــي لــــوي دریـــاب ؤ
لــــــه انــــوارو فــــیض یـــــاب ؤ
زر دري ســــــوه دهجـــــــرت ؤ
دوه بالــــــا پــــــر زیـــــادت ؤ
چـــي رحلـــت یـــې دجهـــان کـــړ
او جـــوار یــــې دســــبحان کــــړ
زه نـــــاظم دده پســـــر یـــــم
ناخلفـــــه ډېـــــر ابتــــر یـــــم

میــر محســـن اغــا پــه یــوزرو درې ســوه یــو
ځلوینښــت هجــري قمــري کــال پــه کنــدهار کــې وفــات او هــورې
ښخ سویدي .

دده تالیفات :

دمیرمحســن اغــا لــه تالیفــاتو څخــه دوه مســتقل
کتابونــه مــوږ تــه پاتــه دي ، او نــورمتفرق اشــعاریې پــه ســراج
الاخبار کې هم طبع سویدي .

دده یــو اثــر ((قواعــد النظــام)) نــومیږي چــې
دغــازي امــان اللــه خــان جلــوس پــه یــو زرو درې ســوه نهــه دېــرش
هجــري قمــري پــه عصــر کــې یــې پښــتو نظــم کــړي ، دعســکرو
قواعــد او بــولۍ یــې پکښــې بیــان کړیــدي ، او دوخــت دپادشــا
مدحــه یــې پــه پــای کــې را غلــې ده ددغــه اثــر خطــي نســخه
داطلاعــات او کلتــور وزارت پــه خطــي کتابخانــه کــې ســاتل
کیږي٭

بــل اثــر یــې چــې ددغــو مزاراتــو رســاله ده ، چــې
شــعري قالــب یــې مثنــوي دي ، او پــر څــو رنګــه کاغــذونو بانــدي
پــه تــوره ســیاهي ، ښــکلي نسخ خــط کښلــي ســویدي درســالې پــه
لمــړۍ پاڼــه کــې پــه جلــي خــط دمــزارات ، تــاریخ ســادات ،
میرمحســن اقــای قنــدهاري لیــدل کیږي تــر لانــدي یــې کښلــ
ســویدي بــه خــط غریبــک اریــایي یــوزرو درې ســوه یــو شــپېته
هجــري قمــري تــر دې وروســته خطــاط کښلــي دي ((کتــاب
ورســاله نــادرة تــاریخ مــزارات بعضــي ســادات کــه ازطــرف پشــنک

٭

((پښتين)) با افغانستان مدفون است درامده ، سنه یک هزار سه صد شصت یک سال هجري قمریه در بیستم ماه ذوالقعده یوم یکشنبه بدست غریبک قندهاري باميزايي حنفي نقل ثاني از خط مصنف علامه زمان سید میر محسن اقاي باميزايي که حقير ديده بود ، در وقت نزدیک به جوار رحمت ایزدي بغتته پیوست کلنا الیه را جعون ......))

درسالي دشروع په لمړي مخ کي بيا دخطاط له خوا په جلي توره سياهي دغه عبارات ليکل سويدي :

((تاريخ افغاني مزارات بعضي سادات پو شنجي ، ميرمحسن قندهاري باميزايي مرحوم بيد غريبک زابلي))

تر بسم الله وروسته رساله دا سي پيل کيږي :

ثـــوني لـــوي پرودګــــاريې
چـي غفـار يـې هـم قهـار يـې
هغـه وصـف چـي دخـداي دي
تـــر عــــاجزه دبنـــده راي دي
کـه يـې حمـد ثنـا بيـان کـړم
هـم بـه خپـل نقصان عيـان کـړم

تـر حمـد او نعـت وروسـته دپيـران ـــ پيـر ، دحضرت محمد ﷺ ديارانو او لمسيانو منقبتونه او مد حي را غلي دي او بيا يې قدسي دکندهار دپنځلسو تنو روحاني مشاهيرو ، شرح حال ، خوارق او مزارات ذکر کړيدي ، لمړئ

يې دبابا ولي ، بيا دشا مسعود الملقب به علي ابدال قندهاري ، سيد شير قلندر او نورو ... دهديرو او سوانحو او کندهار ته دراتګ ذکر مفصل کړيدي ، دغه کتاب په يو زرو درې سوه دوويشت هجري قمري کي نظم سوی ، پدې کي يې ويلي دي :

پدې ملک کي وليان ډېر دي
چي په شمار تر حساب تېر
دي
څوک غلجي څوک دراني دي
ټول په صدق نوراني دي
هغه ذات چي دغر غښت دي
دښايسته وليانو کښت دي
که دهر يوه بيان کړم
هم بيان يې په ښه شان کړم
دا کتاب به ډېر دراز وي
هم به لري دطراز وي
مختصر و کوتاه وايم
دسيدا نوحال زه نمايم
نور مي نظم کړم دلبره
په پښتو ژبه خوشتره
که يې نوم دچا په کار وي
دنامه يې طلبګار وي
مزارات يې نوم دي ياره

ښــه یــې ونغــوره هوښــیاره
زر درې ســـوه دهجـــرت ؤ
دوویشـــت نـــور پرزیـــادت ؤ
چـــې اتمـــام ددې کتـــاب ســـو
هـــم روښـــانه تـــر افتـــاب ســـو
دا رســـاله پـــدې بیتونـــو پـــای تـــه رســـیږي
چـــې اتمـــام ددې کتـــاب شـــه
مشـــر زوي لـــا جـــواب شـــه
التمـــاس ددې دعـــا کـــړم
زه محســـن دي التجـــا کـــړم

تـــر دي اختتامیـــه بیتـــو وروســـته دخطـــاط غریبـــک کنـــدهاري شـــعر راغلـــئ دي ، دا رســـاله کومـــه ممتـــازه املـــایي ځانګړنـــه نـــه لـــري ، او دپښـــتو پـــه مروجـــه املـــا لیکـــل ســـوې ، او دګـــړدودی خصوصـــیت مراعـــت یـــې پـــه ځینـــو ځـــایونو کي کړي ، په ځینو نورو ځایو کي ترې پاته سوي دي

یادونه :

دمیرمحســـن کنـــدهاري دریـــم کتـــاب هـــم پـــدې وختـــو کـــي تـــر لاســـه ســـو دا اثـــر دپښـــتو دزده کـــړي یـــوه رهنمـــا ده چـــې دامیـــر عبـــدالرحمن خـــان پـــه امـــر یـــې دحبیـــب اللـــه خـــان دپښـــتو زده کـــړي لپـــاره کښـــلي ؤ ، دغـــه رســـاله پـــه پیـــل کـــي دپښـــتو دنســـب پـــه بـــاب هـــم یـــوه څېړنـــه لـــري چـــې البتـــه دغـــه څېړنـــه یـــې عنعنـــوي رنـــګ لـــري او قاعـــده یـــې دپښـــتو ژبـــې

# دغریبک خزانه

دګرامرونــو پــه تــاریخ کــي زیــات ارزښــت لــري ( دپوهانــد دوکتورزیار دکتب خانې خطي نسخه)

حواشي او ماخذونه :

عبدالاحــد اخنــدزاده چــي پــه غریبــک مشــهور ؤ دکنــدهار لــه مشــهورو ذوقمنــدانو څخــه ؤ او یــوه ډېــره مغتنمــه کتابخانــه یــې درلــوده ، دواصــل روښــاني اشــعار دهمــدغي کتابخـانې نــه دپښــتو دیــوه بــل زړه ســواند خــدمتګار پوهانــد رشاد په وسیله تر موږ رارسېدلي دي

پورتــه ماخــذ : کنــدهار مجلــه پرلــه پســې ۲۰۲ ګڼه دداؤد خان د جمهوریت دوره

## دمحمد نور شاعر دغير مطبوع دېوان دسر دپاڼو غزلي

ليکوال : سرېبن [۲]

عبدالاحـــد اخونـــدزاده کـــاکړ چـــي دزړې جـــامع داخونـدزاده پـه نـوم سـره يـې پـه کنـدهار کـي شـهرت در لـودي يــوه ډېــره مغتنمــه کتابخانــه در لــوده ،ددي کتابخــانې پــه متفرقــو قلمــي پــاڼو کښــي دمحمــد نــور نــومي شــاعر دقلمــي دېوان دسـر څـو پـاڼي چـي څلـور غزلـي لـري زمـا ګوتـو تـه راغلـي دي مـا چـي دپښـتانه شـعرادرې ټوکـه او يـا مـې دشـاعرانو نـوري تــذکرې ددې شــاعر دژوندانــه دحالــاتو دمينــدلو پــه ملحــوظ سره واړولې خو متآسفانه کوم څرک مي يې ونه موندی

نــــو مجبــــوره ســــوم دپښــــتو ادب دښــــاغلو متتبيعينــو لپــاره مــي دا غزلــي را نقــل کــړې چــي ګونــدي دوي يــې دژوندانــه دخبرلــو ده شــا وخــوا پــه لټــه او بشــپړ دېــوان دميندلو هڅه وکړي

بسم الله الرحمن الرحيم ط

ابتـــــدا ده پــــه نامــــه دپــــاک مــــولي
چــــي دکــــل عــــالم خــــالق دي پــــه رشــــتيا
کــــل اشــــيا يــــې ثنــــاوايي پــــه ښــــه وجــــه

[۲] ماخذ : کندهار مجله ۱۳۵۵کال دجمهوريت دوره

که زمین و ما فیها دي که سما
هم بې ضد هم بې نظیر دي په خدا یي کي
رب واحد دي لاشریک دي هویدا
کل اشیا سوه په صیغه دکن موجود
چي له نزد یې امر سوي پر پیدا
محمد نور به دي ثنا صفت څو شمار کړي
چي نې حد نې اندازه سته نې احصي
******

محمد دي دکونینو پېشوا
محمد دي ثقلین رهنما
دلولاک ایت یې چتر پر سر باندي
دا خلعت درب له نزده دي اعطا
رحمت اللعلمین دده صفت دي
په فرقان کي دي نازل یس ، طه
چي خانه ددین آباده په نبي سوه
څلور دایه یې څلور یاره کبري
د(( محمد نور)) غریب حاجت دي رب
قبول کړي
چي قایم سي دنبي زیر لوا
******

صبر سکون راته عطا کړي زما رب
ورک له ما نفس هوا کړي زما رب
اماره نفس مې تابع دعبادت کړي

# دغریبک خزانه

راتــــه رام دغـــــه بلـــــا کـــــړې زمـــــا رب
چــې پــه یــاد دتــش نامــه دي ځــان وســېځم
هســي جــوش ســتا دحــب را کــړې زمــا رب
چــې پــه تــش نامــه دي ســر و مــال ښــندمه
دا رنــګ حــب را کښــي پيــدا کــړې زمــا رب
چــي دچــا پــه بــې رحمــی مضــطرب نســم
دا ســـي رنـــګ تحمـــل را کـــړې زمـــا رب
پـــه خـــوردن دقهـــر مـــامکړې پښـــېمانه
دا ترخـــــه راتـــــه حلـــوا کـــړې زمـــا رب
نـــو نګـــاه مـــي کـــړې زبـــان لـــه بـــد ګفتـــه
ســـتا پـــه ذکـــر مـــي ګویـــا کـــړې زمـــا رب
چــي بــه ســتا رضــا پــه هغــه کښــي پيــدا وي
هغـــه زمـــا شـــغل دنيـــا کـــړې زمـــا رب
کــه دا ســتا رضــا پــه ســر و پــه مــال مـومم
را حاصـــــله دا وړيـــــا کـــــړې زمـــــا رب
چــي وي ســتا پــه کښــي رضــا هــم درســول
هغـــه کـــار زمـــا برپـــا کـــړې زمـــا رب
مــا همــدم او همقــدم پــر شــریعت کــړې
لـــه بـــد عتـــه مـــي جلـــا کـــړې زمـــا رب

# دغریبک خزانه

د استاد محمد معصوم هوتـک ((لیکنه))



هغــه ســیمه چــې د کنــدهار د احمدشــاهي ښــار کلــا پــر راتــاو ســوې وه ، د ښــار تــر جوړیــدو وړانــدې د پــوپلزو پــه قــوم اړه درلــوده او د هغــوی ملکیــت ؤ پــه کــال ۱۱۶۹ هــق کــې لــه دې مځکــو شــخه ښــپږ ســوه جریبــه د لــوی احمــد شــاه بابــا (۱۱۶۰-۱۱۸۶هــق) پــه امــر د هغــه وخــت د معمــارانو لــه خــوا رجــه ســوه او ښــار پکښــې ودان ســو دا مځکــې زیــاتره کرونــدې وې خــو ســیمه ییــز او تــاریخي روایتونــه داســې دي چــې کلــې هــم پکښــې وه. د تــاریخ احمدشــاهي مولــف محمــود الحســیني خــو دا ســیمه ده خواجــه بللــې ده (تــاریخ احمدشـــاهي ۱/۵۴۶ مـــخ محلـــي روایتونـــه مـــو دغـــه راز د احمدشــاهي ښــار پــه شــمال ختــیځ کــې د یــوه پخــواني مســجد جــامع پــه شــته والــي هــم خبــروي او داســي ښــکاري چــې دا مسجد جـامع د ښـار تـر ودانېدلو وړانـدې هـم موجـود ؤ ځکـه ئـې نـو زړه جـامع بللـه د ښـار دغـه کـونج چـې د بروشـاه بـرج جنـوب لویـدیځ تـه واقـع ؤ پـه قبیلـوي وېـش کـې بـامیزو تـه ورسـېدلو او

هغــوي کورونــه پکښــي ودان کــړل د بــاميزو مخــور مشــر او د احمدشــاهي دولــت لــوي وزيــر اشــرف الــوزراء شــاولي خــان بـاميزی (بګيخـان) پـه همـدې سيمه کـي اوسـيدئ او کـورئـې اوس هـم ښـايي ولـاړ وي شـاولي خـان بـاميزي دغـه جـامع لـه سره ودانـه کـړه . د اوداسـه لـه پـاره ئـې حـوض پکښـي جـوړ کـړ خـو نـوم ئـې هماغـه پخـوانی نـوم ؤزړه جـامع پاتـه سـو . د حضـرت سـرور کائنات ﷺ مبار کـه خرقـه چـي د نومـوړي شـاولي خـان پـه همـت تـر کنـدهاره راورسـېده . د نـوي ځـای د جوړيـدو تـر وختـه پـوري پـه همـدې زړه جامعـه کـي کېښـوولـه سـوه د زړې جامع موقعيـت خـو د احمـد شـاهي وېـش لـه مخـي د بـاميزو پـه کوڅـه کـي ؤ خـو جـامع تـه څرمـه د کـاکړو څـو کـورنۍ لـه قديمـه اوسـېدلې لـه دې کورينـو څخـه يـوه د شعيب اخونـدزاده کـاکړ کـورنۍ ده چـي د نومـوړي جـامع د امامـت چـاري يـې سـرته رســولې ددې کــورنۍ متــاخر مشــهور شخصــيت عبدالاحــد اخونـدزاده نوميـدئ اولـه نامـه سره ئـي غريبـک کـيښ د غريبـک د کــورنۍ پــه بـاب ځـوان ليکـوال او د نومـوړي مرحـوم لمســی فرقانمـل (قـرآن مـل) يـوه ګټـوره ليکنـه کړيـده چـي مـا د کنـدهار د تـاريخ پـه اوږدو کښـي مجمـوعې پـه ۳۲۹ مـخ کـي ولوسـتله بر کــت دې مــل او د ويــاړلو اســلافو پيــروي دې نصــيب وي . د روان ميلـادي کـال پـه پـاي کـي ګـران مطيـع الله جـان روهيـال لـه کنـدهاره راتـه څـو کتابـه او مجلـې راواسـتولې او پـه هغـو کـي د نومـوړي قـرآن مـل پـه لـاس ليکـل سـوې رسـاله ګـوتې هـم وه چـي نــوم ئــي اياغريبــک پيژنــئ؟ ؤ پــه دغــه ليکنــه کــي د اروابنــاد

غریبک په باب موجز معلومات ورکړه سوي دي او د لیک ښه ډېري نمونې ئې راوړي دي په ځنګ کي ئې د (غریبک کتابتون) په نامه دیوې کتبخانې د تاسیس خبره هم کړېده چي د خوشحالۍ خبره ده . زما سره د غریبک مرحوم په باب څه داسي معلومات سته چي پر هغه لیکنه باندي به یو اضافه توب غوندي وي او ددې مقالې له لاري به ئې ستاسي ښاغلو لوستونکو سره شریک کړم .

د اروانښاد غریبک پلار مرحوم عبدالخالق اخوندزاده پر علم سربیره د خپل وخت تکړه طبیب هم ؤ ده په طب کي یو کتاب کښلی دئ چي ((قرابادین لوینابي)) نومیږي . قرابادین یوناني لغت دئ او هغه علم ته ویل کیږي چي د طبي بوټو او وښو خاصیتونه بیانوي . د قرابادین په نامه د طب بېلابېل کتابونه سته .

د ملاعبدالخالق اخوندزاده قرابادین لوینابي یوه نسخه د حاجي عبدالمجید هوتک په کتب خانه کي وه دا نسخه د مؤلف پخپل لیک کښل سوې وه او حاجي صاحب ته د مرحوم غریبک له کتبخانې څخه لاس ته ورغلې وه . د اروانښاد غریبک په ښکلي خط باندي زما سره یو یادانښت سته چي د (رسالهٔ غرور) په نامه د علامه حبیب الله کندهاري (حبو اخوندزاده) دیوه اثر په پیل کي ئې کښلې دي . او په هغه کي ئې تر یوه لنډ یادانښت وروسته د خپل زوي عبدالهادي جان د زیږېدلو نیټه او ځاي ښوولي دئ .

دده خپله لیکنه داسي ده .

ولادت پسرم عبدالهادی جان در شب چهار شنبه ۳۰ شهر رجب عام شنواریان ۱۳۴۷ در نصف شب مذکور از کتم عدم در عرضة ظهور باش یافت آلها مهربانی برماعاجزان کن

د (شینواریانو) کوڅه چي په دې یادانبست کي ورته اشاره سوې ده او مرحوم غریبک خپل کور په هغه کوڅه (عام) بللي دی د هغې کوڅې نوم ؤ. چي د زړې جامع له شماله ختیځ کونج سره نبنتې وه د کوڅې سر په کلافصیل کي د بامیزو کوڅې شمالي لورته واقع ؤ د غه کوڅه وروسته د نصواریانو په نامه یادېدله . نیخه چي ولي ؟

د مرحوم غریبک د کتابتون او له کتاب سره د نوموړي دمیني په باب ځیني بیانونه ښاغلي قرآن مل راړوي دي ماته ارواښاد واسعي صاحب دده په باب یو وخت ویلي وه چي.

یو وخت یو چاته (داسړی به غالبا محمد رسول مسلم ؤ) له هندوستان څخه چاد انګلیسي ډیکشنري راوړې ده غریبک مرحوم ته چا خبر ورکړ چي مسلم صاحب ته د لغاتو یو کتاب چا راوړی دی . دی سمدستي د مسلم کورته ورغی او د کتاب د رانیولو هیله ئې څني وکړه مسلم صاحب نتهه وکړه غریبک مرحوم په داسبا سپین ږیري پرمر که کړل او کتاب څني رانیو .

د ارواښاد غریبک کتابتون په سیمه کي ساري نه درلود او دا کتابتون دده تر وفات وروسته د مرحوم

حاجي عبدالمجید هوتک له خولې په دیرش زره افغانۍ بیه سو حاجي صاحب ویل چي ده غوښتل ټول کتابتون رانیسي خو یو دوست منعه کړي وه . وروسته دا ټول کتابتون ملاسعدالله واخیست او تر رانیولو وروسته ئې د کتابو شوقیان پر رامات کړل حاجي صاحب مرحوم نقل راته کاوه چي ده پکښي د کندهاري علماوو تصانیف او پښتو کتابونه لټول او د سلو په شاوخوا کي کتابونه ئې پکښي را ټول کړل او بیه ئې ملا سعدالله ته ورکړه دا کتابونه له حاجي عبدالمجید هوتک سره پراته وه او په ۱۳۵۵ ش کال ئې یوه برخه ماته را ښکاره کړله چي له ځینو څخه ئې مایاداښتونه واخیستل او ددې لیکني په پاي کي به یې راوړم .

د ثور تر فاجعې دوه درې کاله وروسته حاجي عبدالمجید هوتک کابل ته کډه سو او کتابونه ئې په ۱۳۶۴ ش کال کابل ته نقل کړل حاجي صاحب کتابونه خورا ښه ساتل او د ملا عبدالسلام صحاب په لاس یې خورا ښه چرمي پوښونه ورکړي وه په دغو شپو کي له افغانستان څخه د نورو ثروتونو تر څنګ خطي کتابونه او نور نوادر پاکستان ته وړل کېدل او هورې عربي سوداګر ورته تیار ناست وو ملا سعدالله ته خو ددغو کتابو درک معلوم ، نو د همدې کال په روژه کي کابل ته راغی او د حاجي عبدالمجید سره ئې شپه وکړه او ټول کتابونه ئې چي پر خطي نسخو سر بیره خورا ډېر چاپي نوادر ، سالنامې ، د تاریخ انجمن ، ادبي انجمن او پښتو ټولني نشریات او د اخبارو کلیکسونونه پکښي وو په یو لک

افغـانیـ وتروښــوول او لمغـوټي يـې کنــدهار تــه رابـارکړل . زه د
همدغــه کــال د کــوچني اختــر پــه لــومړیـ ورځ خبــر ســوم چــي
کتابونــه ملاســعدالله واخيســتل سمدلاســه کنــدهار تــه پســي
راغلــم او دارګ پــه کتابفروشــانو کــي داروابښــاد ملاقاســم اخونــد
کتابفروشــي دوکــان تــه ورغلــم او هــورې راتــه وويــل ســول چــي ملا
ســعدالله ددغــو کتــابو د بوجيــو ســرونه لــاهم خلــاص نــه کــړل او
پــه هماغــه ورځ ئــې پاکســتان تــه واړول زه مــات زړه بيرتــه کابــل
تــه ولــاړم او هغــه څــو بيتــه مــي ددغــو کتــابو پــه يــاد وويــل چــي
لوســتونکو بــه زمــا پــه کتــاب (درنــه کــورنیـ ۱۱مــخ) کــي لوســتلي
وي او ښــاغلي قــرآن مــل ئــې يــو بيــت پخپلــه ليکنــه ۵مــخ کــي را
اخيستی دی .

حــاجي عبدالمجيــد هوتــک کيســه راتــه کولــه
چــي د غريبــک پــه کتــابو کــي د استاد کمــال الــدين بهــزاد هراتــي
څــو نقاشــیـ هــم موجــودي وې او خلګــو بــه د بتــانو لــه اسيته يــوې
او بلــې خواتــه اړولــې ورورســته لــه کابلــه څخــه محمــد صــالح پرونتــا
راغــی او دغــه نقاشــیـ يــې واخيســتلې د غريبــک د کتبخــانې يــو
کتــاب زمــا ســره هــم ســته او هغــه لکــه وړانــدي چــي اشــاره ورتــه
وســوه د علامــه جبــو اخونــد زاده اثــر رســالهٔ غــرور ده چــي اروابښــاد
محمد حليم سليمي ماته راکړي وه .

د غريبــک د کتــابتون هغــه کتابونــه چــي مــا د
حــاجي عبدالمجيــد هوتــک پــه کتــابتون کــي کتلــي او يادابښــتونه
مي ځني اخيستي وو دادي .

- شرح فیروز : د ملا احمد بن اسمعیل درانی قندهاري لیکنه کتابت ۱۲۲۳ هـق
- زاد السالکین : د ذاکر شریف د میا شیرمحمد صاحبزاده تالیف ۱۲۷۱ هـق
- قول الجمیل : د شاولي الله صاحب اثر ۱۲۸۸ هـق
- معجزات د حافظ کبیر د محمد رسول ولد ملا نعمان کتابت ۱۲۹۳ یا ۱۲۶۳ هـق
- قرابادین لوي نابي د ملا عبدالخالق اخوندزاده د غریبک د پلار ) د مؤلف په قلمي
- منافع المسلمین د محمد حسین هروي د ملا زید تره کي په کتابت له دغه کتاب سره یوه بله رساله هم ګنډلي وه او ماپه یادابنت کي ورته کښلي دي (بسبک پیرروښان)
- تعدادالکبایر د ملا فرح الدین اخوند قندهاري .
- رسالهٔ مناقب ملا فرح الدین د عبدالحلیم کاکړي تالیف د مؤلف پخپل خط ۱۲۳۶ هـق ددي رسالې په پاي کي د کندهار د ملا قطب اخوند مدایح راغلي وه چي په پښتو نظم وه .
- تنزیه الخلفاء عن مطا عن الاعداء د قاضي غلام هوتک قندهاري تالیف ۱۲۶۴ هـق د کتابت کارئي عبدالحکیم بن عبیدالله په ۱۲۶۵ هـق کال یعني تر تالیف پنځه کاله وروسته سرته رسولی ؤ

- نجوم الهدایه لاحوال البرزخ و القیامه د قاضي غلام محمد هوتک تالیف
- اسکات الخاضعین در رد روافض د قاضي غلام محمد هوتک تالیف کتابت د محمد جان ۱۲۶۰ هـق
- رد وهابیه (دراستفتاي علماي هند) فارسي د قاضي غلام محمد هوتک اثر
- عالمیه (در تعداد علوم) د قاضي غلام محمدهوتک تالیف د فیض احمد په کتابت ۱۲۷۱ هـق
- دغه اثر قاضي غلام مرحوم د سردار محمد عالم خان په نامه کښلی ؤ سردار محمد عالم خان په کندهار کي د سردار حمدل خان مشر زوي ؤ
- ارشاد الحق د قاضي غلام محمد هوتک تالیف ما پخپل نوي اثر (سل بګړۍ یو پوړني) کي د قاضي غلام محمد هوتک په برخه کي ددغه کتاب یادونه کړې ده خو هغه وخت زما څخه دغه یادابښتونه نهام وه او حافظې مي ددغه اثر په باب مرسته نه راسره کوله ځکه مي نو د ارشاد الحق په باب کښلي دي چي دا اثر مانه دی لیدلی او کتلی که هر وخت د (سل بګړۍ یو پوړني) کتاب دوهم وار چاپیدلی د قاضي غلام محمد هوتک د نورو تالیفاتو یادونه هم باید وسي.
- المشکله اجوبه السوالات (دمیامحمداعظم په جواب کي د علامه حبو اخوندزاده تالیف.

- منهاج العابدین (پښتو) د علامه حبو اخوندزاده د ملاشمس الله په کتابت ۱۲۳۶ هـق
- رساله کتحققه القوبول والقبله في تحقيق سمت القبله د علامه حبو اخوند زاه تاليف د کهندل خان د جامع د امام ملا عبدالاحد کتابت .
- نقدالثقات في ترئيف الموضوعات د علامه حبو اخوندزاده تاليف دا نسخه د پاي له خوا نيمګړې او ډيره خوشخطه وه .
- انموذج د ملاخضر داوي تاليف د مؤلف په خط ملا خضرداوي د اروانباد عبدالهادي خان داوي نيکه ؤ
- شمس الدين کاکړ ديوان .
- شرح منثوي مولاناي رومي مسمي به تحفه الدرويش د ملا قطب اخوند توخي ليکنه د مؤلف پخپل خط ۱۳۱۰ هـق
- شرح محمود نامه د ملاقطب اخوند تاليف د ملا حقداد په کتابت ۱۳۲۱ هـق
- د احمدشاه بابا ديوان
- تعليم السلوک د ملا الکوزي بن ملا اسمعيل تاليف
- وقيه الطوائف الصوفيه د ملا احمد بن اسمعيل قندهاري تاليف د مؤلف پخپل خط
- غريب المصنف دا کتاب چي د عربي ژبي قاموس يا دايرۀ المعارف دئ د نړۍ له ډيرو مهمو نسخو څخه ګنل کيږي د کتاب دليکني کال د ۳۰۰ هـق حدود

# دغریبک خزانه

وه مــا داوراښـــاد د بینـــوا پـــه کتـــاب (د افغانســـتان نومیـالي) کـي یـو خـت لوسـتي وه چـي غریـب المصـنف د ابـو تـالیف دی چـي پر لیکنـه ئـې ځلویښـت کالـه وهلـي وه ددې کتـاب نسـخې پـه ټولـه نـړي کـي درو ځلـورو تـه رسـیږي او پـه ایـا صـوفیه او بـریټیش مـوزیم کـي ئـې نسـخې سـته (د افغانسـتان نومیـالي ) کتـاب زماسـره نسـته خـو غالباپـه دریـم یـا ځلـورم ټـوک کـي د غریـب المصـنف یادونـه راغلـي ده د غریبـک د کتبخـانې غریـب المصـنف پخپلـه د یـوه بشـپړ کتـابتون ارزښـت درلـود خوافسوس چي

آنقدح بشکست و آن ساقي نماند

آنقدر مي ریخت که هیڅ باقي نماند

دغـه یادابـتونه مـي سږ کـال چـي افغانسـتان تـه تللـی وم پـه خپلـو کاغـذوکي و مونـدل او د هغـو پـه مرسـته مـي د غریبـــک د کتـــب خـــانې د یـــوه کـــوچني کـــونج ملغلـــري در وپیژنـدلې . غریبـک مرحـوم تـه دي پـاک خـداي (ج) جنتونـه ورکـړي او د کتـاب ذوق دې د تـاریخي کنـدهار پـه زلمیـو کـي نوم هم و غوړیږي

اوکویل ، کاناډا

۳ جنوري ۲۰۰۶ع

# لیکوال سو او خطاط سو

استاد حیات الله ((رفیقي))



په اشرف البلاد کندهار کې یو ستر دیني عالم اود پښتو پوخ شاعر لیکوال ، د هنر او ښکلا یو داسې څوک درته دربښیم چې هغه څو کاله مخ کې د همدې ښار په یوه ناحیه کې چې د بامیزو د کوڅې په نامه اوس هم شهرت لري په یوه جامع مسجد کې دیوه روحاني شخصیت په څیر ژوند کاوه خو اوس زموږ په ټولنه کې جسماً وجود نه لري مګر معناً به د همدې ستر خوان د کور به په توګه دده نوم پاتې وي دا ستر شخصیت په کندهار کې د زړې جامع لوی مدرس استاد خدای بخښلي عبدالاحد اخوند زاده مقلب په (غریبک) ؤ خدای بخښلي عبدالاحد اخوند زاده صاحب لکه څنګه چې مې پورته اشاره ورته وکړه یو روحاني شخصیت او په یوه علمي او ستره روحاني کورنۍ کې را پیدا او په همدې ستره کورنۍ کې را ستر سو عالم سو ،استاد سو ، دمعنوي برخې خاوند سو ، شاعر سو ، لیکوال سو او خطاط سو . زه د خدای بخښلي اخندزاده صاحب پر شخصیت ،

روحانیت ، علمي هویت او ادبي وړتیا باندي نه ږغیږم او نه زه دا توان په ځان کي وینم چي څه پر ولیکم .

ددې اصلي وجه داده چي یو خو زه په هغه وخت کي چي ما خداي بخښلي اخوند زاده صاحب لیدلي وو ډیر ووړ هلک وم تقریباً د نهو او یا اتو کالو به وم خو ډیر زه د دوي کورته ورغلي یم ځکه چي اخوند زاده صاحب زموږ نږدې دوست وو او د هغه زوي محترم حاجي عبدالحمید اخوند زاده چي اوس الحمد الله ژوندي دي او زما خوریي بلل کیږي تقریباً زما همزولي دي نو زه به د هغه سره د دوي کورته ور تللم

صرف زما دونه پیاد دي چي اخوند زاده صاحب یو ډیر مهربانه د نرمو خبرو کولو څښتن ارامي خبري کولي او ډیر عمر یې په خپل کتابتون کي وخت تیراوه او دده کتابتون دده په کور کي دده کوټه او یا (حجره) وه یو زیات شمیر کتابونه هم اوډلي په تاخچوکي پراته وه او هم د حجري په انګړ کي تیت پراته وه ډیر د نل پاخه قلمان ، (نیان) یي لرل د سیاهي یوه غوټه هم ما لیدلي وه مشواڼي خو لا پر پرېده ، دکتابتون د پشتي ډیري رنګارنګ ابرۍ هم په یوه تاخچه کي پیچلي پرتې وي د حجري په میانځ کي څو لوي ډبري د سریښو کنډولي او د لرګو ګیره هم پرته وه . هلته یو نوي تخته سنګ هم پروت وو او ودې تخته سنګ ته څېرمه د هغه د ناستي ځاي وو چي یوه نغاړکۍ پر هواره وه.د

اخوند زاده صاحب دا کتابتون د هغه د عبادت ځاي یا خلوت هم وو ، هرڅوک ودې خلوت ته نسواى ورتلاى ، ځکه چې یو ډول سهم اودرنښت یې لاره ددې له پاره چې موضوع راڅخه اوږده نه سي او ګران لوستونکي خسته نه سي زه د اخوند زاده صاحب (غریبک) صرف د هغه د لیک د هغې په برخه باندې یو لنډه تبصره کول غواړم او د نور اړخونو څخه یې ځکه ډډه کوم چې د خداي ﷻ بخښلي اخوند زاده صاحب غریبک لمسي نور احمد(قرآن مل) د نوموړي په اړوند یو کتاب ګوتې لیکلی دې اود نوموړي خداي بخښلي د ژوند زیات اړخونه په هغه کتاب ګوتې کې انځور کړل سوي دي خو په هر صورت راځم د لوي عالم ، فاضل استاد ، پوخ شاعر ، نقاد لیکوال او عرفاني شخصیت د لیک پر هغې برخې باندې ، درانه او خوږ ژبي شاعر اخوند زاده صاحب غریبک علاوه پر لوړو ښې ګڼو باندې دلیک (خطاطي) په هنر کې هم لوي لاس لاره اود یوه ښکلي لیک څښتن وو . دده ډیر اشعار دده په ښکلي لیک باندې انځور کړل سوي وه حتې هغه کتابونه کوم چې اخوند زاده صاحب به صحافي کول اود هغه کتابونو به کومي پاڼې ورکې اویا خرابې سوي وي ده مبارک په هغه پخپلو بابرکتو ګوتو داسې ولیکل چې دهغه کتاب د چاپ سره په یې هیڅ توپیر نه درلودي ، د محترم فاضل استاد اکثره په لاس لیکل سوي لیکونه دونه ماهر او هنرمندانه لیکل سوي

وه چې چانـه ویـل چـې دا دي پـه لـاس لیکـل سـوي وي دده دلیـک او چـاپ فـرق چـا پـه یـوه اسـانه نـه سـو کولـاي خـو پـه تاسف بایـد وویـل سـي چـي اخونـد زاده صـاحب هغـه لیکونـه ،شـعرونه ، کتابونـه چـي دده پـه ښـکلي لیـک بانـدي لیکـل سـوي وه د بـي علمـي پـه سـمندر کـي د نـاپوهي پـه ګـرداب کـي لـاهو سـول خـو زه نـه پـوهیږم چـي ددې لـوي شخصـیت ښـکلې لیکونـه بـه اوس د نمـونې پـه ډول پـاتي وي کـه څنګـه او کـه چیـري پاتـه وي اود محتـرم حـاجي عبدالحمیـد خـان او یـا د قـرآن مـل صـاحب سـره وي زمـا هیلـه داده چـي یـوه بېلګـه یـي زمـا ددې لیکنـي پـه پـاي کـي راوړي تـر څـو زمـا لیکنـه د هغـه ښـکلي لیـک پـه راوړلـو نـوره هـم ښـکلا پیـدا کـړي اود بلـه پلـوه زمـا د لیکنـي د تائیـد سـند وګرځـي. ځکـه چـي د نومـوړي ټولـه کتـابتون د جهالـت او نـاپوهي لیـوني بـاد تیتـوپرک کـړ او یـوه پاڼـه یـې هـم پاتـه نـه سوله دا هـم بایـد ووایـم چـي زه پخپلـه د لیـک د هنـر پـه فنونـو او اقسـامو بانـدي نـه پـوهیږم ځکـه زه دا نـه سـواي ویلـاي چـي د خـداي بخښـلي غریبـک صـاحب لیـک دود ، د لیـک کـوم قسـم وو، او پـه کـوم فـن بانـدي ده کـار کـاوه خـو یـوازي زه دونـه پـوهیږم چـي د نومـوړي لیـک ډیـر ښـکلي او ښایسـته وو او دئ . پـه اخیـر کـي زمـا هیلـه د جنـت فـر دوس غوښـتنه او دي سـتر عالم ته در ننبت دي

د کندهار د پوهني رئیس

استاد حیات الله ((رفیقي))

## له پښتو سره یې لېونی مینه وه

استاد حبیب الله رفیع



غریبک خو یو مشهور سړی ؤ دشهرت دغه یې له کندهار نه وتلې ده په ټوله پښتونخوا خپره ده ، دده لوي عزم او اراده چې له پښتو سره لېونی مینه وه ده پښتو ډېر زاړه او زیات کتابونه ، نادر کتابونه ، ډېر مهم کتابونه را ټول کړي ول او ده پدې برخه کې تر زیات حده پوري هغه کوله چې خلګو یې کیسه کوله (( یووخت یې چې مېرمنې پیسې ور کړي وې چې ورسه مېلمانه په کور کښې دي څه شئ را وړه ده پیسې ترې واخیستې او په سودا پسې ولاړ خو په بازار کې پر کتابونو پېښ سوي ؤ او کتابونه یې اخیستي ول دئ لا کورته نوو راغلئ چې مېلمانه ولاړل ډوډۍ ي هر څه یې ور کړي ؤ لاکن ده دمېلمنو دډوډۍ پیسې پر کتابونو ور کړي وې • همداسې یوه بله کیسه ده

---

• ددې خبرې په اړوند یې دملاسعدالله اخوندزاده وررور حیات الله اخوندزاده وایي :
هو همداسې وه هغه ددې ورځې یو یادابنت هم په هغو کتابو کې چې موږ ځیني را نیولي وه داسې کښلی ؤ :

## دغريبک خزانه

وايي چې يووخت يې کوزه او چلم چې وړي ؤ خرڅ کړئ يې ؤ او په عوض يې کتابونه اخيستي ؤ په کور کې چا پوښتنه ور څخه کړېوه چې دادي څه وکړه ؟ ده ورته ويلي ؤ چې کېداي سي چې يو چا په دا ځاکي غور ځولي وي نو ددې لېونۍ مينې نه تاسي پوهېږي چې غريبک دپښتو لپاره څومره کار کړي ؤ دا چې دده کتابونه به څه سويوي يو څۀ خو يې سته موجود دي په ځنو ځايونو کې مثلاً دبايزيد روښان يوه مهمه رساله وه چې هغه دده له کتابونو څخه را وتلې وه او يا دواصل روښاني اثر چې بيا استاد رشاد چاپ کړې وه دغه هم دده دکتاب خانې له کتابونو څخه را وتلې وه

منته

حبيب الله ((رفيع))

کابل زرنګار هوټل

---

پيسه هغه ده چي مصرف سي پر کتاب باندي
نه پرډوډۍ او پر کباب باندي

## دخپل عصر نابغه يې بولم !!

دکندهار دزړې جامع پخواني خطيب عبدالاحد اخوند زاده که دفاني دنيا څخه يې ستر ګي پټې کړيدي خو دهنر او ادب دمينوالو په زړنو کې ژوندي دي روح دي يې ښادوي هر وخت چې دده خطي نسخې او داشعارو ديوان يې مينوال ګوري او مطالع کوي يې



نوميالي او مرحوم خطيب صاحب يادوي دخپل عصر نابغه يې بولم پر اسلام او وطن مين شخصيت ؤ زه بې الايشه ليکم چې با درکه ، بافهمه باحساسه افغان او عالم تير سويدي بې جهته به نوي چې دلته دهيواد دنومورو ميړنو ليکوالانو ، خطاطانو او تاريخي شخصيتونو ته هم دعاوي وکړم چون بحث پر فاضل او دانشمند خطيب صاحب باندي دافغانستان پر ټولو خلګو باندي خاصتاً بيا پر کندهاريانو باندي حق لري چې دده هنر ژوندي وساتي په اصطلاح عوام مو پل دده پر پل کښيږدي څو دمرحوم دخطاطي هنر پر مختګ وکړي

# دغریبک خزانه

ځوانان خو دوطن وارثان دي دوي مکلف دي چي دمر حوم خطیب صاحب قلمي او چاپي اثار وګوري ما دده څو خطي نسخي وکتلي تحلیلولاي مي نسواي دده په خطاطي کي فارسي ، عربي ، پښتو طرزونه کار سویدي که ځیر سو اهل تصوف ؤ ظاهراً ماهر خطآط ښکاریدي او باطناً سیاستمدار پر اسلام ، قران او حدیثو مین شخصیت ؤ ظاهراځ که یې دغریبک تخلص غوره کړیؤ خو زما په فکر دعلمي پلوه یې دومره غنا درلودله چي زه همدا اوس په ویاړم هغه کسان چي دده په ژوند کي دده په غریبانه دېره کي دده په صحبت او مجلس مشرف سویدي نیک بخته خلګ وه نه پوهېږم چي دده کوم شاګرد به ژوندي وي چي زه یې چاکر سم څه ځیني زده کړم خپله تنده په ماته کړم دمر حوم عبدالاحد اخوند زاده صاحب دخطاطۍ یوه لنډۀ دعایئه دلته یادول غواړم څو یې لوستونکي تحلیل کړي
((یارب سبب ساز که یارم بسلامت باز اید
ـــــ برهاندم از چنګ ملامت )) که هر څه ولیکم لږ دي
((قرآن مل)) صاحب دي ښاد ، کامیاب او سر لوړي وي چي موږ سپین بږري هڅوي چي څه ولیکو او ویې لولو

په احترام

الحاج عبدالصمد (خاورین )

دکندهار دپوهني ریاست تدریسي مرستیال

## عالم او تقوي دارؤ

لیکنه : مولوي عبدالرحمن

السلام علیکم !

ومحترم ادیب ، شاعر ، استاذ قرآن مل صاحب ته !

دستر شخص جناب عبدالاحد اخوند زاده صاحب مرحوم دښېګڼو په هکله په مختصرډول معلومات وړاندي کوم !عالي قدر محترم عبدالاحد اخوند زاده صاحب مرحوم عالم او تقوي دارؤ بشردوست ، وطن پالونکئ ؤ چي همدغه صفات دانسان اصلي معیار بلل کېږئ بر علاوه دده محترم نور اعلي صفتونه لیکوال ادیب او شاعر هم ؤ چي دده محترم لیکنه ، ادبیات ، شعرونه ، علمي ، تصوفي ، فلسفي اړخونه در لودل پدغه اساس ویلاي سو چي زموږ لپاره یي لوي خدمتونه کړیدي چي دمنني او لمانځي وړ دي په مقابل کي که يې وواېو قدرت مند

خداي دي په جنت کي لوړ مقام ور کړي روح دي يې ښاد وي

# هغه یاد چي له ماسره دي !

لیکنه : استاد اسدالله همپا



محترم ورور قرآن مل صاحب !
تاسو دملاصاحب عبدالاحد اخوند زاده (غریبک) په حصه کي معلومات غوښتي وه .

بلې ! زموږ کور په خلرمه ناحیه دبامیزو په کوڅه کي دئ زموږ له مشرانو سره ((غریبک)) پوره پېژندل دیوي کوڅي وه دهغوي د جملې څخه زما داکا زوي حاجي عبدالقیوم خان چي ډېر مشهور ښکاري ؤ او دده دشاګردانو له جملې څخه ؤ په دیني او شرعي کتابونو کي یې ښه مطالعه او معلومات درلودل دشعراوشاعرۍ سره یې هم لاس درلود ده دغریبک خبري یې همېش موږ ته کولي ویل به یې ((ډېر کړولئ ملا ؤ په صرف ،نحوه ،منطق ، فلسفه ، طب او ریاضي علومو پوهېدي سر بېره پردي شاعر او ادیب هم ؤ ده (حاجي عبدالقیوم) به یې اشعار په ډېر خوند سره ویل او ویل به یې شعرونه یې حقیقي دي بیا به یې موږ ته تشریح کول او رقم ـــ رقم خبري به یې کولي اشعار یې په پښتو ، دري او عربي ژبو باندي وه دده په قول ملا صاحب په نقشبندیه کړۍ کي هم شامل ؤ ښه صوفي ؤ او خفیه ذکر به یې کاوه دماز دیګر لمونځ چي به ختم سو په محراب کي به یې سر پټ کړ دماښام تر اذانه په یې ذکر

کاوه دچا سره به یې خبري نه کولې دمحمد ﷺ دعاشقانو له جملې څخه ؤ اکثره وخت به یې په عشق کښې ډوب ؤ دهیچا سره به یې خبري نه کولې همدا رنګه ډېر طالبان پر هستېدل دسهار لخوا یې دوې دورې جوړولې چې په لمړۍ دوره کښې دلویو طالبانو دوره وه چې غټ کتابونه یې ورته ویل او تدریس یې کاوه په دوهمه دوره کښې یې دکښتي دورې طالبانو دوره شروع کېده هغو ته به یې درس کاوه ښه قوه افاده یې درلوده حاضر جواب ؤ سترګیا یې نه حسول اود ماپښین لخوا یې بله دوره درلوده چې هغو ته یې دملا مثنوي تدریساوه چې په هغه دوره کې زه هم شامل وم په درې ژبه کښې یې ژور معلومات درلودل لکه خپله مورنۍ ژبه چې یې وه کوم بیت چې به یې شرح کاوه اکثره به یې اوښکې تر ستر ګو بهېدلې تر هغه وخته به یې شرح ور کول مثالونه به یې پر رواوړل تر څو چې ټول پرې پوه سول پوښتنه به یې و کړل کوم مشکل خو نه لري شرح یې په ډېره خواږه او پسته ژبه ور کول دې ملا صاحب ډېر مخلصان دلودل دلیري ځایونو څخه به ورته را تلل دده څخه یې دعا غوښتل او دناروغۍ لپاره به یې ځاښت ور کاوه او دم به یې پر کاوه دخداي دمخلوق به ښه په کېدل کوم وخت چې به کومه جوړه او یا بنده وه خلګو به ملاصاحب پخپل منځ کښې کښېناوه اوواک به یې ور کاوهمدا صاحب ښه عادل سړئ ؤ ددواړو خواوو خبري به یې په دقت سره اورېدلې بیا به یې دشرعي مطابق فیصله

ایستله فیصله یې عادلانه وه او دجانبینو دقبول وړ به ګرځیدله او یوه طرف به سرغړونه ،نه کوله دعا به پر وسوله جانبین به یې سره غیږ په غیږ کړل دادده عادت ؤ چې خامخا به یې سره خوشحاله کول بیا به نو دئ رخصتیدئ اوومجلس ته به یې مخ را واړاوه او په تبسم به یې وویل ((ماته دغه حالت ډیر خوند را کوي چې دوې خوابدي ډلې پخپله سره پخلا کړم بس دغه زما خوشحالي ده ))غریبک صاحب ډیره مجهزه کتاب خانه درلوده چې په هغې کې یې هر ډول کتابونه موجود وه چې دهغه له جملې څخه یې قلمي کتابونه زیات وه دغریبک له کتابخانې څخه ډیرو علماؤ ګټهٔ پورته کوله دده دکتابخانې کتابونه دکندهار ولایت وډیرو لیرومنطقو ته دمطالعې لپاره تلل او استفاده به ځینې کیدله وروسته تر مطالعې به دده کتاب خانې ته سپارل کیدل دده دکتابخانې له فیضه ډیرو علماؤ ګټهٔ پورته کوله سر بیره پر دې یو تعداد لوي او کوچني شاګردان یې درلودل چې په نایي او نوکي قلمونو باندي به یې لیک په لیکۍ په دري او پښتو لیکنه یې ډیر دښایسته لیک درلودونکي ووزل مننه استاد اسدالله (همپا )

دحاجي میر ویس نیکه لیسې مدیر کندهار

## هغه د کتابو چار دېودالۍ جوړ کړۍ ؤ

استاد احمد ((صمیم))



عبدالاحـــد اخونــدزاده دخپــل وخـت یـو عـالم ، زاهـد او خطیـب ؤ دمشــرانو لــه قولــه چــي هغــه دکتــابو چــار دېــودالۍ جــوګړي کــړۍ ؤ او دئ بــه یــې مــنځ کــي پرېوتی او ویـل بـه یـې چـي ماتـه بـس دغـه یـو جنـت دي چـي کلـه بــه پیســي پــه لــاس ور غلــي نــو دکــور دسـودا پـه نیـت بـه راووتـی ، خـو ددې خـوا بـه یـې کتـاب کورتـه ورووړئ ډېر کتابونـه او نادراثـار یـې در لـودل ،پـر مېنـه یـو زوي پاتـه سـو چـي هغـه هـم کشـر ؤ دهغـه دامـا خپلـو لخـوا یـې کتابونـه پـر بـازار سـوه چـي پـه نـه څـه پانـدي خرڅـه سـوي حتــي یــو قلمــي کتــاب یــې دسـلیمي لــاس تـه وروړغلــئ ؤ او پــر خارجیــانو یــې پــه خــورا ډېــرو ډالرونــو خــرڅ ســو او خــارج تــه یووړل سو

# د ملا عبدالاحد اخوندزاده (غريبک) دليک هنر

لیکنه: ډاکټر عبدالرؤف رفیقي

قدر من نوراحمد جان قرآن مل صاحب !
السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته !
پر ځواني دي برکت او پر قلم دي افرین سه



ډېر خوشحاله يم چي تاته
ليک در ليږم ليک دي هم را ورسېد او
وخت پر وخت دي خپر پدونکي اثار
هم را سېږي خوښ يم چي ليکل
کوې او پر ښو ښو موضوعاتو ، ته خبر
يې چي زموږ ژبه ويني ډېر کار ته په
خصوص سره که لنډي کيسې ليکونکي که خوا را څخه بده
نه کړي دعلمي او ادبي کار څېړنو او کار ته ډېره اړتيا لري او
زموږ هغه باسواده او با استعداده ځوانان ددې اړ تيا په پياوړ
تيا کي خوار ي کول ورته اړين دي
دخداي بخښلي عبدالاحد اخوندزاده
((غريبک)) دليک هنر ، دشخصيت او اثارو دژغورني
خدمتونه له چاڅخه ندي پټ که ستا ياد وي کله چي يوولس
کاله وړاندي زما ستاسي کره شپه وه ستاسي قبله گاه صاحب
يې ځو دليک نمونې را ښکاره کړي وې او دکومي مجلې دشا
پر پشتۍ مي هم دهغه دخطاطۍ يوه بېلگه ليدلې وه رشتيا

# دغریبک خزانه

هم دغه کمال چي دده په هنر کي دي هغه ډیر دقدر وړ دي ده هغه خو خپل هنر دومره پیاوړي کړي ؤ چي دشرق دخطاطۍ تاریخ که لیکل کیدي نو دغریبک بې حاله به نیگړي وي خو موږ دا څه ډول کولاي سو چي دغریبک دهنر بېلگې تر واړه شرق او غرب پوري ورسوو .خداي دي پر تا کوم شتمن بختور پېښ کي چي ددغه بېلگي رنګه در چاپ کړي پر ښه بر ښېښېدونکي او ښایسته شیټ چي دهغه دهنر حق ادا سي مايې دلته په کوټه کي دقاري احسان الله سره ځیني بېلکي البته پخپل اصلي حالت کي لیدلي دي چي ور سره خوندي دي څلور ورځي تر مخه دډسمبر پر یوویشتمه نېټه زه ، پروفیسر سیال کاکړ ،او راز محمد راز چي (( دافغانستان داوسنیو نوټو کرښي یې خطاطي کړیده )) دګران عبدالخالق مندو خپل د وروراو اکا دزوي دودونو ډوډۍ ته ماښام میلاک هال ته روان ؤ پروفیسر سیال کاکړ راته وویل : چي څلور کاله تر مخه په کوټه کي کوم کتابفروش ته دغریبک کتابتون کتابونه په لاس ور غلي وه چي نوي خطي نسخي پکښي وي هغه وخت یې ماته په څلوېښت زره روپۍ راکولې خو دما سره پیسي نوې چي دحضرت صاحب ؤ که دپیر صاحب دکور کوم ځوان بیا هغه واړه کتابونه او نسخې په پنځه شپېته زره روپۍ واخیستې .ستا دبر یالیتوب په هیله

ستا ورور عبدالروف ((رفیقي ))کوټه
دسامبر ۲۶/ ۲۰۰۶

## د فاضل غریبک صاحب قلمي نسخې

استاد سلطان محمد عزیزي

د فاضـل غریبـک صـاحب قلمـي نسـخې او اشـعار ډېـر دقـدر وړ دي ځرنګـه چـي پـه افغانسـتان کـي دتـاریخ پـه اودو کښـي ډېـر علمـا ، لیکوالـان او هنـر منـدان تېـر سـویدي او ددوي اثـارو تـه ځرنګـه چـي لازمـه ده پاملرنـه نـه ده سـوې او دهیـواد داطلاعـاتو او کلتـور وزارت ځرنګـه چـي ښـایي هغسـي هلـي ځلـي نـه دي کـړي ډېـر ددغسـي لیکوالـانو او هنـر منـدانو اثـار پـه کـورو کـي دخلګـو سـره سـته لکـه دمحتـرم عـالم او فاضـل غریبـک صـاحب قلمـي نسـخې او اشـعار چـي ډېـر دقـدر وړ دي داد ټولـو ادب پوهـانو او مینوالـو شخصـي دنـده ده چـي پـه دغسـي اثـارو پسـي پلټنـه وکـړي تـر څـو چـي زمـوږ دنومیـالیو تـاریخ ژونـدي ، او دټـولني پـه ګټـه اسـتفاده ور ځنـي وسـي زمـا غوښـتنه داطلاعـاتو او کلتـور لـه ریاسـت څخـه داده چـي درادیـو او اخبـار لـه لاري دغسي اثارو غوښتنه وکړي.

با احترام

سلطان محمد(عزیزي)دکندهار دپوهني ریاست

تر بیوي مرستیال

## دخط مختلف اقسام يې ډېر ښکلي ليکله

ليکنه: عبدالرشيد آرين



مرحوم اخوندزاده صاحب دکندهار يو فر هنګي شخصيت يو دانشمند او عالم شخصيت ؤ چي ډېره غني کتابخانه يې درلوده ، او تر دې علاوه هغه دخط په هنر کي ډېر مهارت در لود ، دخط مختلف اقسام يې ډېر ښکلي ليکله چي دده دلاس ليکنه زما سره خپله ديو کتاب په شکل وه چي هغه نا تکمله کتاب ؤ ده کار پر شروع کړيؤ او مختلفي بر خي يې دده دنثر او دنظم در لودلې قريب به ددوو سوو ورقو په شا خواکښي ؤ اما يو سلو پنځوس ورقي بّه يې خالي وې يوازوي پنځوس ورقي به يې ډکي سوي وې نو که څه هم دده سره له نژدو شناخت نه در لود لاکن دده له نامه سره اشنام او دده له ذوقه سره اشنا وم ، او دده يو کتاب چي په لاس راغلي ؤ هغه مي ډېر وخت ساتلئ ؤ خو په کابل دتنظيمي جګړو په جريان کي چون زموږ کور په مکرور يانو کي ؤ په اول خط ؤ نو دنورو خلګو وکورونو له چور سره زما دکور دچور تر څنګ ټول کتابونه چور سول چي دا کتاب هم په کښي لادرکه سو منتها دده دهغه ليکني او کتاب څخه و پښتو ادبياتو ، دپښتو ژبي سره دده علاقه مندي او په پښتو

# دغریبک خزانه

کـي دده دنظـم او دنثـر نمـونې چـي مالیـدلي وې کـوم پوخـوالئ
چـي یـې درلـود ئ دهغـه شخـه دا معلومېدلـه چـي دئ خپلـه یـو
غنیمـت دپښـتو ادب لپـاره ؤ او هـم پـه مجمـوع کښـي دعلـم
مخصوصـاً دئ پـه اسـلامي علومـو کـي یـو مغتـنم شخصـیت ؤ
خـداي (ج) دي ښـه ور سـره وکـړي خـداي دي پـر ورحمېـږي
چـون چـي ډېـر کلونـه تېـر سـوي دکتـاب دورکېـدو دوولـس کالـه
تېـر سـویدي نـو دا مـي هیـر دي چـي ده کـوم نـوم ورتـه انتخـاب
کړیؤ او کـه یـې یـا پـه نسـخ او نسـتعلیق لیکـل سـوئ ؤ خـو عنـاوین
یې په نورو ډېرو ښکلو اقسامو سره ور کړي وه

په درنښت

عبدالرشید ارین

۹/۹/۱۳۸۲یکشنبه کابل دشهزاده صرافي مارکېټ

## یو غني کتابتون او د قلمي نسخو یو بډاي زېرمتون

لیکنه: استاد روهیال



دارواښاد عبدالاحد اخوندزاده غریبک په باره کې دنظر څرګندول به زما غوندي نالایقوانسانانوتراوده• وتلئ کار وي په ځانګړې ډول دهغه ارواښاد دخطاطۍ په اړ وند دنظر څرګندول نورهم څه ستونزمن کار دي خو دا چې یو ښاغلي ملګري دې کار ته مجبور کړې یم نو باید خپل نظر ښکاره کړم ارواښاد غریبک دنن څخه نیمه پېړۍ وړاندې دکندهار په علمي حلقو او محفلو کې یو حتمي رکن ؤ ځکه هغه اورا ښاد نه یوازي یو تکړه خطاط ؤ ،بلکې دخپلې ځانګړې علاقې له مخې یې دخپلو شخصي رو پیو له لاري یو غني کتابتون او د قلمي نسخو یو بډاي زېرمتون هم درلود چې کندهار لیکوالو به دهغوي ددغه بډاي کتابتون څخه وخت په وخت استفاده کوله ارواښاد غریبک ددغې ځانګړې علاقې تر څنګ

•اوده ((عهده))

# دغریبک خزانه

دهغـوي دکـور نی دیـو غـړي پـه قـول دپښـتو او دري ژبـو شـاعري هـم کولـه چـي البتـه تـر اوسـه يـې پـدې برخـه کـي ځـانګړي ټولګـه نـده چـاپ سـوې نـو پـدې ډول مـوږ دلتـه دیـوه عـالم ، لیکـوال ، شاعر او خطاط پـه بـاره کـي خبـري کـوو خـو دا نظـر دهغـوي خـط لیکنـي تـه ځـانګړي سـویدي ارو ښـاد غریبـک دښـکلي خـط لیکنـي پرځـو بېلـا بېلـو نمونـو بانـدي بـر لاسـي ؤ لکـه نسـخ ، تسـتعلیق ، ثلـث او شکسـته زمـا پـه فکـر دهغـوي نسـتعلیق خـط بـه د نـورو نمونـو پـه ورانـدي ډېـر ښـکلي او ځـانګړ ي توجـه ور وي ځکـه هغـوي پـه ډېـر مهـارت پـدې برخـه کـي کـار کړیـوي او پـه اصـطلاح پـدې لـاره کـي دهغـو پخـو او بـر لاسـو کنـدهار اسـتادانو پـر شـېوه کـار کـړي چـي زمـوږ دخـط پـه تـاریخ کـي ځـانګړئ ځـاي لـري زه د هغـوي دخـط پـر مسـلکي اړخ نـه رغېـږم ځکـه زه پـدې اړخ کـي کومـه مسـلکي زده کـړه نلـرم خوپـه عمـومي ډول کـه دهغـوي دخـط پـه بـاره کـي خپلـه خوښـه ښـکاره کـړم نـو بایـد ووایـم دهغـوي پـه خطونـو کـي زمـا لپـاره تـر نـورو نمونـو شکسـته او نسـتعلیق دځـانګړي توجـه ور دي او ددوي دغـه کـار بـه دکنـدهار خطاطـانو پـه لیکـه کښـي یـو ډېـر ښکلي او دیاد ور کاروي

پە ادب مطیع الله ((روهیال ))